محقق علي خان پکتيار

# دافغان ـ انگليس لومړۍ جگړه



دافغانستان دعلومو اکاډمي
داجتماعي علوموم مرکز

کابل ۱۳٦۹ ش



# د افغان او انګلیس لومړی جګړه

مؤلف

علی خان پکتیار



د افغانستان د علومو اکادمی

د ټولنیزو علومو مرکز

د تاریخ انستیتوت

کابل: ۱۳۶۸ ش

۱۹۹۰ م




دچاپځای : دولتی مطبعه شعبهٔ مانوتایپ

دچاپ کال : ۱۳۶۸ ش

دچاپ شمیر : ۱۰۰۰ توکه

دکتاب نوم : دافغان او انگلیس لومړی جگړه

دمولف نوم : علی خان پکتیار

# فهرست

# سمون لیک

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| الف سریزه | ۸ | مارکی‌نه | مارکیتونه |
| الف سریزه | ۱۱ | نومړی | لومړی |
| » | ۱۳ | ابگلیسانو | انگلیسانو |
| » | » | نگال | بنگال |
| » | ۱۴ | سیمه | سیمی |
| ب | ۱۴ | اندی | باندی |
| ج | ۱۳ | به | په |
| | ۱ | پیشو | پښتو |
| و | ۳ | سلگروی | سلگری و |
| ۸ | ۱۱ | تدینیو | باندینیو |
| ۲۲ | ۷ | له | اله |
| ۲۴ | ۱۶ - ۱۷ | برنوی | برتانوی |
| ۲۵ | ۹ | استعمای | استعماری |
| ۳۵ | ۵۱ | یو | سلیون |

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
| --- | --- | --- | --- |
| ٣٦ | ٥١ | تکح | نکاح |
| ٥٦ | ٤ | پر خلاص | پرخلاف |
| ٥٤ | ١٧ | استقبا | استقبال |
| ٦١ | ٢١ | غلی | غالی |
| ٩٠ | ٢ | تانو ی | برتانوی |
| ٩٣ | ١٠ | لا | لار |
| ١١٢ | ١ | غز | غزنی |
| ١٢٣ | ٠ | ینه | ښه |
| ١٢٣ | ١٠١ | پا تجر | پا تنجر |
| ١٢٣ | ١١ | ١٣١ | ١٣ |
| ١٢٤ | ١ | یا | بیا |
| ١٧ | ١٢ | پته | په پته |
| ١٣٥ | ٤ | یوسیب | یو سی |
| ١٣٥ | ١١ | ډ ا | بوډا |
| ١٣٩ | ١٧ | تغمروه | تعمرو نه |
| ١٥٢ | ١٢ | معنو | معنوی |
| ١٦٠ | ١٢ | استانه‌ی | استاز ی |

# تقریظ

دافغانانو او انگلیس لو سړي جگړه تر عنوان لاندي علمي او تحقیقي اثر چي محترم علي خان پکتیا ر په اتو فصلو نو کي لیکلای دي . یوه لو یه او مفصله مقدمه لري . محترم لیکوال په اخر کي دخپل زیارا و زحمت او خیړنو په باب په زړه پوري نتیجه هم لیکلی ده . دمأخذو او منابعو په برخه کي عمومي معلومات وړاندي کوي .

ځاي لري چي په وضاحت سره و وایم چي دغه تحقیق دافغانستان د نولسمي پیړي په خاص ډول د نولسمي پیړي نیمایي کي سیاسي او اقتصادي وضع ، تحولات او هراړخیز عوامل خیړل شوي دي .

د دغه علمي اثر په لو مړي فصل په نو لسمي پیړي کي انگلیسي استعماري دولت دافغانانو په پاکه خاوره یرغل او برید وکړ ، چي دتاریخ پاڼي دانگریزانو ددغه تورعمل او غیرانساني سیاست په برخه کي پوره معلومات څرگند وي .

محترم پکتیار دوخت داستعماري حکومتونو سیاست په پام کي نیولی او خپل نظر داسي څرگند وي : دانگریز پراختیا غوښتونکو او دتزاري دولت توسعه طلبانه سیاست دتاریخ په پاڼو کي په وضاحت سره لیدل کیږي . دواړه هیوادو غوښتل چي په افغانستان او ایران کي خپل سیاسي نفوذ قایم کړي تر څو له دي لاري خپل اقتصادي هدفونه تر لاسه کړي . پر دغه موضوع باندي لیکوال دقیق او علمي تحقیق کړي

دي. چې دلو ستو نکو دپاره یې گټو راو پهزړه پورې معلومات برابر کړي دي .

په نولسمې پیړۍ په خاصه توگه ددې پیړۍ په لومړیو لسیزو کې د افغانستان اقتصادي او سیاسي وضعې په باب پکتیار په دو یم فصل کې نوي معلومات وړاندي کوي. وایي چې افغانیتو لنه څرنگه دفیوډالي نظام په منگولو کې ښکیل شوه .ددې خاورې په گوټ گوټ کې داوږ لمبی پو رته شوي او بې شماره بې گناه انسانان په کې وسوځول شول. په څرگنده ویلی شو چې نولسمې پیړۍ دا فغانستان دخلکو د مبارزو په تاریخ کې خاص او ځلاندمقام لري. ددغې هیوادخلك د زمانې دلوي استعمار ي قدرت( انگریز ) په مقابل کې په میړانه جنگیدلي دي.محترم پکتیار دامسئله په دریم فصل کې دقیقه او ډیره ښه څیړلې ده او مو فقیت یې تر لاسه کړي دي. نه یوازي موضوع یې په پام کې نیولې ده.بلکې راغونډشوي مطالب دتاریخ علاقمندانو او محققینو له پاره گټور شمیرل کیږي.او دهغو زیات ضرورت او اړتیا وي تأسینوي.

څرگندهده خبره خو داده چې محترم پکتیار دهندپنجاب دسکانو ملی مبارزه او پاڅون ته عمیقه اوجدي پاملرنه کړي او داسې وايي: دپنجاب سکانو دانگریزي استعماري قدرت په سرسته دهند په شمال کې یو خپلواك او ازاد دولت تأسیس او منځ ته راو ست محترم لیکوال وړ پسې دانگریز حکومتناوړه او غیر انساني سیاست په مورد کې چې په افغانستان کې وړ څخه زیاته او پراخه گټه ئې اخیسته تله په دقیقه توگه تر څیړنې لاندي نیولې دي. د کابل له تخت څخه دامیر دوست محمدخان لرې کولو

څخه هدف داوه تر څو د شاه شجاع خپل نږدې متحد پر تخت کښینوي.

محترم پکتیا ر د خپل علمی او ګټو ر تحقیق په څلو ر م فصل کې د هند په خاوره کې د انګلیس استعما ر ي قدرت ټینګوالی په دقیقه توګه څیړلی دی . چې د تحقیق علاقمندانو له پاره ز یات ګټو ر معلومات برابر کړي دي. لیکوال هند ته د انګر یزانو راتګ او دهغې داستعما ر ي سیاست ناوړه اغیز ي دافغانستان په سیاسی ، اجتماعی او اقتصادي وضع باندې تحلیلوي چې البته د نولسمی پیړی تاریخ جریان دا خبره تائیدا و ثابتوي. محترم پکتیا ر په دې باره کې د معتبر و منابعو په حواله او اتکاء خپله عقیده داسې څرګندوي: انګر یز ي استعمار د هند په خاوره کې د تجارت په نامه د هندنیمې وچې ته لاره پیدا کړه او تجارتی کمپنی تر دغه نوم لاندې منځ ته راغله. چې دوخت په تیر یدو سره په هند کې تجارتی کمپنی موقف په اسانه ټینګ شو او په ډیر لږ وخت کې دیو ي مقتدر ي اقتصادي او سیاسي ارګان په بڼې سره و و اښته. ځای لري چې و وایم محترم پکتیا ر دا ډیر مهمه مسئله په واضحه توګه بیان او روښانه کوي زه په خپل وار سره عقیده لرم چې د هند په تاریخ کې د انګریزانو راتګ او بیا هلته د استعما ر ي قدرت ټینګول یو مهم او د څیړلو وړ موضوع ده .

محترم پکتیا ر په افغانستان کې د انګلیس مداخلا او ناوړه سیاست په باب خپل نظر په دقیقه او مستند ډول څرګندوي. انګر یزانو دافغانستان

په خلاف ، دافغانستان گاونډي هېوادونه تشويق او تحريکول
چې پر افغانستان باندي يرغل وکړي او بيا په نتيجه کې دوى ترې گټه
واخلي .

محترم پکتيار دخپل تحقيق په پنځم فصل کې د افغانانو په خاوره د
انگليس وسله وال استعماري يرغل او بريد پيل کړ. د معتبرو او باور
وړ سنداوو په اتکاء انگريزانو په ۱۸۳۹ م کال کې خپل وفادار گوډاگي
شاه شجاع د کابل پر تخت باندي کشيناوه محترم ليکوال داموضوع
په خپله ليکنه کې ښه څيړي چې څنگه شاه شجاع دانگريزانو په مرسته
ددوى مخ لپاره دافغانستان تخت او تاج تر لاسه کړ . ددي علمي تحقيقي
اثر مطالعه دا ټکى روښانه کوي چې محترم پکتيار دا مهمه مسئله او
موضوع په شپږم فصل کې په واضح ډول او دقيقه توگه څرگنده
کړي ده چې دانگريز دغه عمل دافغانستان دخلکو ملي او احساسات
څنگه راو پارول او د انگريزانو پر ضد تحريک او جنبش منځ ته راغی
او دانگريزي قوي وسله وال پوځ په مقابل کې يې لاس پوري کړ .
دانگليس استعماري دولت اردو او پوځونو په افغانستان کې ماته
وخوړله : پر ځای خبره ده چې وويل شي محترم پکتيار داووم فصل
مطالب هم د انگريز يرغل او لشکر کشي ته اختصاص کړي ، چې دلو
ستونکو توجه مهمو ټوټکو ته را اگرزولی ده.

محترم پکتيار عقيده لري چې دانگريز استعماري دولت خپلو منځ

د

بو حانه هلو خلو ته‌دوام‌و رکړ چې په افغانستان کې له لاسه تللی پرستیژ

بیا تر لاسه کړي‌اساداتلاش او هڅې دخاو روسره برابري‌شوي‌او دغه

استعمار ي‌قدرت بالاخره په‌افغانستان کې د ستري‌ماتې‌سره مخامخ شو او

داجرئت‌یې بیاو نکړچې په‌افغانستان کې پاتې‌شي.

محترم پکتیار موضوع په‌ښه‌توگه څیړلی‌او د مطالبو فصل‌بندي

په‌غوراو ښه‌توگه‌شوې‌ده‌له منابعو څخه‌په‌علمي او دقیق‌دول‌استفاده

شوې‌ده‌د تحقیق‌ژبه‌ډیره‌ساده‌او روانه‌ده دغه‌علمي‌تحقیق‌سر بیره پردې

چې‌ژ یات‌ارزښت‌لري چاپېدل‌یې هم‌ارزښتمن او ضرور ي‌گڼل کیږي.

سرمحقق دی‌معاون دوکتور.

محمد اکبر مددي

د صديق علي خان پکتيار علمي تحقيقي پروژه چې د افغان او انګليس لومړۍ
جګړې تر عنوان لاندې ليکل شوې ده. او کتله د محترم پکتيار «د دغې
علمي تحقيقي رسالې د مخونو شمېر په قلمي بڼه (۹۲) پاڼو ته رسيږي. خو د
دې رسالې د مقدمې په شمول د سلو مخونو په حدودو کې کيداي شي. رسالې د
مقدمې او نتيجې په ګډون په اتو فصلونو کې په علمي شکل تنظيم شوې ده.

په نولسمه ميلادي پېړۍ کې د افغان او انګليس جګړې په داسې تاريخي
شرايطو کې پېښې شوې چې افغانستان په دغه وخت کې د دوو سترو
استعماري ځواکونو ترمنځ د بفر ستېټ ( Buffer state ) بڼه
غوره کړې وه. له يوې خوا د روس تزاري امپراتورۍ د توسعې
او پراختيا په حال کې وه چې حدود يې د افغانستان پولو ته رانږدې
کېدل او له بلې خوا د انګريز استعماري قوت د خپل اشغال په يوه پېړۍ
کې له هند څخه د اوسني افغانستان ختيځو سرحدونو ته د قدرت لمن خپره
کړې وه. د غو سترو استعماري قوتونو په لويديزه پوله کې ايران او په ختيځ
کې د سکانو ګوډاګي دولت په افغانستان باندې د تيري له پاره لمسول.

د بهرنيو عواملو ترڅنګ د افغانستان سياسي حالات د نولسمې پېړۍ
افغاني شهزادګانو د مخالفتونو په نتيجه کې مخصوصاً له شاه زمان
څخه وروسته سخت په خرابيدو شول او دغو کورنيو شخړو د بهرنيو
استعماري ځواکونو په تېره بيا د انګريز استعما-

ر ي‌قوت‌ته‌د افغانستان په‌د ننيو چارو کی‌دمخاسخ لاس‌وهنی‌او تیر ي
لاره اواره کړه.د غه‌غوره‌تاريخي مطالب دمحترم پکتيا ر په‌رساله
کی‌په تفصيل سره تحليل شوی دی.

دمحقق پکتيار د علمی تاریخ‌لیکنی : په‌ر ښا کی‌د اصلی‌منابعو
په‌اتکاء‌دا فغانستان‌دنولسمی پیړی و ضعه‌دنړیوالی وضعیت په‌چوکاټ
کی‌په دیا لکتیکه‌تو گه‌قالب‌بندي کړي او په‌یوه‌په زړه‌پوری نتیجه
باندي‌یی منتج کړي‌ده . رښتیا هم درسالی‌لیکوال دوچو او ستو مانه
کوونکو بی سرو پایه پیښو درا وړلو په ځای . دتاریخی‌حوادثو
تحلیل‌ته‌زیاته پاملرنه کړي ده او داپه‌خپله‌دعلمی هستوریوگرافی
داصولوسره سمه‌ښیړنه‌ګڼل کیږي .

داچی‌دانگریزا ستعماري امپراتوري ولی په افغانستان‌باندي
لوړي جگړو تپله ، علت یی څرګند دي . یوخود امیر دوست
محمدخان له خوا دبر تانوي هند د سیاست په خلاف ذکر کی موـ
سوضوع وه .ځکه امیر په هغه شرطد انگریزانو ملاتړ تائیداوه
چی دافغانانو په‌خلاف د انکریزي استعماری سیستم په‌چوکاټ
کی نوي راپاڅول شوي قوت یادسکیانو عروج مخنیوي‌وشی .
خوادنگریزي‌استعماري‌نقشه ډیره پراخه‌وه‌او هغوي داسی یو څوک
د امیر په توګه په‌پام کی ونیو چی له سکانو سره دتوا-
افق په صورت‌کی دا فغانستان خاوره دروس‌تزاري امپراتوري
له یرغل څخه وساتی .

دشاه شجاع قدرت ته رسول دانگریزي استعمار د همدغي نقشي

له مخې عملي شول . حتی انګریزانو غوښتل چې د یوه تش

په نامه اسیر په کښېنولو سره په مخاسخ ډول د افغانستان اداره

لاس کې واخلي او د تزاري روسيې امپراتوري د توسعې مخنیوی وکړي.

په افغانستان باندې له لومړي جګړه د انګریزي استعماري

ځواکله خوا تحمیل شوه ، خو دیوه پردي حکومت منلو ته حتی

دافغانستان شهزاده ګان هم تیار نه وه . خه پاتی دي ته چې ولس

پر ګنې هغه ومني. انګریزان د افغانستان په نیولو بریالي شول.

خو بې نه شول کولی د غه قبضه وساتي او د هیو ادمیلیو نو

دانګریز په ظاهرې پخه . خو په نهاد کې ورسته اسپر

توري دلوسري ځل له پاره ساته کړه او د همدغه وخت وروسته

دانګریزي استعماري ځواک د پراختیا لمر په غړغړ وشو .

د محقق پکتیا ردغه موضوعات له یاده نه دي غورځو

لي او په ځیرنه کې یې ورته شایسته ځای ور کړي دي .

محترم پکتیار د څیړنی په برخه کې پو ره بریالی دی او د اثراو چاپ

ییدل یې هم ارزښتمن او ضروري ګڼل کیږي .

دنو رو علمي پرمختګو نو هیله کوم .

په درناوي

د سرمحقق سرمحقق سرستیا نصرالله سو یمن سنګل

۱۳۶۵ / ۲ / ۹

ج

# سریزه

څرنګه چې افغانستان د اسیا په زړه کې ډیر مهم جغرافیائی موقعیت لري او د دې هیواد له قلمرو څخه ډیرې لنډې لارې ختیځ او شمال ختیځ پلو هند او چین ته او لویدیځ لور ایران او منځني ختیځ هیوادو ته شمال پلو د منځني اسیا د ترکستان او ماوراالنهر ملکو ته تللي دي، نو، له همدې کبله د نولسمې پېړۍ د پیل څخه د مخه د مهم سوق الجیشي موقعیت د برتانوي استعمار چیانو توجه چې د هند نیمه وچې یوه برخه یې لا د مخه (۱۶۰۰ م) په لاس کې درلوده ځان ته را اړولې وه. دوی بې له شکه علاقه درلوده چې د خپل پرمخ تللونکي صنعت د پاره نوې مارکېټونه پیدا کړي او خپل نظامي، سیاسي، تجارتي او اقتصادي نفوذ او قدرت ته پراختیا ورکاندي. د همدغو عواملو په پام کې لرلو سره افغانستان نومړي د استعماري هیوادو د رقابت او بیا وروسته د برتانوي استعمار چیانو د تیري او تجاوز هدف وګرزیده.

انګلیسانو وکړای شول چې د یوې پېړۍ په موده کې د بنګال نه نیولې تر پېښوره پورې سیمه لاندې کړي. همدرنګه تزاري روس د نولسمې پېړۍ په لومړیو لسیزو کې د منځنۍ اسیا سیمې یو پر بل پسې

و نیولی، البته ددی دوو قدرتونو د مخامخ کیدو انگیزه هم اقتصادی
عامل ؤ چی یوه د مصئون سرحدونو د لو په خاطر او بل گرمو اوبو ته
د یو معبر د پیدا کولو د پاره تلاش درلوده. په داسی حال کی چی په
منځنی اسیا کی د دغو دوو سترو قدرتونو تر منځ رقابت روان ؤ،
ناپلیون هم دا تلسمی پیړی په آخر او د نولسمی پیړی په لومړی لسیزه کی
د هند د نیولو هڅی پیل کړی. دغه امپراطور کوښښ کاوه چی د فرانسی
ایران، افغانستان او نورو هیوادو په گډون د برتانیی پر ضد یو کنفد-
راسیون منځ ته راولی او په دی توگه انگلیسان له هنده څخه وباسی.

په عین وخت کی شاه زمان د افغانستان پاچا هم غوښتل چی برتا-
نوی اشغالگران د هغه ځای د محلی دولتونو په کمك له هنده نه لری
کاندی. په همدی لحاظ د افغانستان پاچا د(۱۷۹۸-۱۷۹۹م) کلونو
په ژمی کی د راولپنډی او لاهور نه ډهلی ته د امرتسر له لاری د
تیاری نیولو په حال کی ؤ چی ورته خبر ورسید چی د ایران پاچا د
انگلیسانو په تحریك په خراسان باندی تیری کړی دی او هرات ئی تر
تهدید لاندی دی. افغانی پوځونه بیر ژر د هند څخه راوگرځیدل. په دی
توگه انگلیسانو، همدا رنگه د هغو گوډگیانو وکړای شول چی په
هند کی د برتانوی یرغلگرو د تکولو او پوره ماتی څخه و نیسی.

ناپلیون هم لومړی په مصر او بیا وروسته د اترلو په جنگ کی
د کلکی شکست سره مخامخ شو. په افغانستان کی هم له شاه زمان نه-
وروسته د درانیانو د عظمت دوره پای ته ورسیده. او په منځنی اسیا کی

دارو پائي هيوادو دلاسو هنياو سياسي فعاليتو زمينه برابره شوه.
پنجاب چې تر دې وخت پورې دافغانستان په قبضه کې ؤ. دافغانستان
دقبيلوي شخړو په جريان کې لو سړي خپلواك اوبيا ډير ژر د هند په
شمال کې ديو ژاندارم قدرت په توگه سر پورته کړ او دانگليسانو په
تشويق ئې دافغانستان څخه دختيځ ولايتو نو په جلا کولو پيل وکړ
او بالاخره پيښو رهم د همدغه جارو جنجال په لړکې دسك دولت په
واسطه ونيول شو او په نتيجه کې دامير دوست محمدخان او انگليس تر
منځ دخفگان سبب شو او حتی دافغان او انگليس دلومړي جگړې ستر
عامل هم د پيښور موضوع وه.

تزاري روس هم وخت ناوخت ايران د هرات نيولو ته تشويق
کاوه. په مقابل کې انگليسان ډاريدل چې که چيري هرات دايرانيانو
په لاس کې ولويږي په هغه صورت کې بالاخره د افغانستان لويديځې
سيمې د تزاري روس په لاس کې پريوزي او به دې توگه به هند ته
نږدې شي، او انگليسانو ته به مزاحمت پيدا کړي. نو له دې سببه انگليسا-
نو دخپل ځان د پاره دافغانستان په لويديځ کې مداخله کول روا گڼل
او دا هم په داسې حال کې چې روسي تزار په وار وار دوی ته اطمينان
ورکړی ؤ چې موږ د ايران په تيري کې لاس نه لرو او نه د هندنيولو
اراده راسره شته.

له بله پلوه شاه شجاع چې دانگليسانو سره په لوديانه کې د تبعيد ... سبا
کولې داسې پوهول کيده چې دافغانستان زيات خلك دی غواړي ...

زیات حقدار هم دی دی. په عین وخت کی دوی داسی فکر کاوه چی که انگیسان، رنجیت سنگ او شاه شجاع سره سمتحد شی په اسانی سره به و کړای شی چی شاه شجاع دافغانستان په تخت کښینوي. نو په هغه وخت کی به دافغانستان حکومت د هند تابع وي او د هندوستان او تزاري روسی تر منځ به یو حائیل منځ ته راشی. په همدی لحاظ په ۱۸۳۸ م کال د جون په میاشت کی دانگلیس، رنجیت سنگ او شاه شجاع تر منځ دري اړخیز تړون په لاهور کی منځ ته راغی او انگلیسا نو پر افغانستان باندی د یرغل کولو تیاری پیل کړه په عین وخت کی دایران پاچا د ۱۸۳۸ م کال د جون په میاشت کی په هرات باندی یرغل وکړ. ولی ایرانیانو ماتی وکړه خو بیا هم د هرات کلابندی دوام درلود. انگلیسانو خپل نماینده له پیغام سره دایران پاچا ته واستاوه چی که چیری په هرات باندی تیری ته دوام ورکړای شی نو دا به دانگلستان د پاچاد نارضائیت او خفګان سبب شی. ایرانیانو دیرژر د خپلی کلابندی ته خاتمه ورکړه.
خو دا چی پر تانوی استعمار چیانو د افغانستان لاندی کولو نیت درلود د (۱۸۳۸) م کال د اکتوبر د میاشتی په لو مړی نیته ئی دافغانستان پر ضد په سمله کی د جنگ اعلامیه نشر ته وسپارله او د ۱۸۳۹ م کال د مئ دمیاشتی په لو مړیو ورځو کی انگلیسی اشغالگر اردو په زیاتی گڼه گونی سره کندهار ته داخل شوه او خپل گوډاگی شاه شجاع ئی پر تخت کښیناوه، همدا رنگه دا شغالگر واردو دو یم قطار د خیبر تنگی له لاری

پر افغانستان باندې تجاوز وکړ امیر له مقابلې نه پرته خپل هیواد برتانوي استعمارچیانو ته پرېښود، په خپله دې د بخارا خواته ولاړ.
خو ډېره موده تېره نه شوه چې د شاه شجاع او د هغه حامیانو پر ضد افغان اولس راپورته شو او ځای پر ځای به ئې د انگلیسانو پر قافلو، کاروانو او گارنیزونونو باندې یرغل کاوه. تیري کوونکو پوځیانو هم ډېر ژر د خلکو د حمل او نقل په وسایلو، استوگنځیو، خوراکي موادو، شخصي شتمنیو په ضبطو او لوټولو لاس پورې کړ چې د لوټمار یو او خپلسري او بې دسپلینۍ د غه جریاناتو په سختۍ سره د خلکو احساسات او کرکه د تیري کوونکو په مقابل کې راپاروله او حالات ورځ په ورځ پېچلي کېدل. د اشغالگرو پوځونو د راتگ په لومړي کال د افغانستان په زیاتو سیمو کې لکه غلزائي قلات، خیبر ننگرهار، کونړ او پکتیا کې خلک د تیري کوونکو پوځونو په مقابل کې راپورته شول او دوی ته ئې ریز سریز کوونکي گوزارونه ورکړل.

په ۱۸۴۰ م کال کې بیا هم د غلزائي قلات خلکو د تیري کوونکو په مقابل کې خپله مبارزه جاري وساتله. امیر هم د همدې کال په اوړي کې بیا افغانستان ته راغی او د تجاوزگرو پوځونو پر ضد ئې مبارزه پیل کړه خو ډېر ژر خپل ځان انگلیسانو ته تسلیم کړ. ولې د امیر په لیږدولو او تبعیدو سره په افغانستان کې جگړه ختمه نه شوه بلکې کابل، کندهار، ننگرهار، لغمان، کاپیسا، پکتیا، هلمند، غزني،

باميان، پروان او نورځايو نه د ډير و سهمو خونړيو پيښو مرکز و ګه
ګڼل کيدل .

۱۸۴۱ م کال په افغانستان کې دستر و وطني مبارزو سره سلګروی
د کندهار، هلمند، غزني، پکتيا، ننګرهار، پروان او دافغانستان په
نورو سيمو کې خلک د انګليسانو پر ضد راو لاړشول. په کابل کې هم
د ۱۸۴۱ م کال دنوامبر دمياشتې په لومړي نيته دلومړي ځل د پاره د پاخون
طرح ترتيب او دجنګ او سولې په خاطر يوه شوراتشکيل شوه. يوه
ورځ وروسته په تيري کونکو باندې ملي پاخون پيل شو او
دافغانستان په ګوټ ګوټ کې دوطن پرستانو په ذريعه ديرغلګروتولګی
له منځه ولاړل. افغاني تيت او پراګنده لښکر چې عموماً دمختلفو طبقو
او قشرونو څخه جوړ شوی ؤ پر انګليس منظمو پوځونو باندې بريې
وموندې ۱۸۴۱ م کال دسمبر دمياشتې په يولسمه نيټه په کابل
کې انګليسي نماينده ګان مجبور شول چې دافغانستان څخه دوتلو
موافقه لاس ليک کړي .

داچې انګليسانو دافغانستان څخه دوتلو فکر نه درلود وعدي
ماتولو په خيال کې شول او په هغه او دغه وخت تير اوه چې دوی
دغزني او اجلال اباد نه مرسته ترلاسه کړي . سردار محمد اکبرخان د
وطن پرستانو ملي رهبر چې ددشمن دغه دوه مخی او عهد ماتول
وليدل نو ديوی غونډی په ترڅ کې ئې په خپلی تفنګچی سره مکناټن د

بر تانیی سیاسی نماینده و و اژ ه اشغالگر و ددی عمده الهام بخښو و نکی
و ژ نی په ذ ر یعه په کلی تو گه خپله ر و حیه با یلوده او جنر ال الفنستن
د ۱۸۴۱ م کال ددسمبر په سیاشت کی دانگلیسی پو ځو نو د پو ره
تسلیمیدو او و سلی و ر کو لو او د پیښو ر له لا ر ی بر تا نو ی هندته د
بیر ته ستنیدو مو افقه لاسلیك کړه او دو عدی سر مسم د ۱۸۴۲ م کال د
جنو ر ی د میاشتی په ۶ نیټه ئی د تخلیی کا ر پیل کړ. خو د هغه قهر او
کینی له مخی چی افغانو لس د تیری کو و نکو په مقابل کی د ر لو ده
پر هغو ی ئی یر غلو نه پیل کړل. انگلیسی تیر ی کو و نکی تو لگی یو
پر بل پسی د جلال اباد په لا ر ه کی د مبا ر ز ینو له خو اتباه شو ل. یوا زی
سر دا ر محمد اکبر خان د افغان او لس مشر و کړای شو ل چی جنر ال الفنستن
او د هغو ی یو څو فاسیلو نه ر و غ ر مټ جلال اباد ته و ر سو ی د نو ر و
شپا ر لس نیم ز ر ه ا ر دو او سلا ز مینو څخه گو ښی دا کتر بر ایدن په ډیر
بد حال جلال اباد ته ورسید او جنر ال سیل ته ئی دانگلیسی ا ر دو د تبا هی
خبر و رساو ه .

دو ست محمد خان چی لا تر او سه د تبعید په حال کی ؤ د بر تانو ي هند
گو ر نر جنر ال لا ر دا یلنبر و له خو ا کلکتی ته و غو ښتل شو . د خبر و
په نتیجه کی ده ته اجا ز ه و ر کړی شوه چی خپل وطن ته راشی او د کابل د
سلطنت پر تخت کښینی خو په دی شر ط چی و ز یر محمد اکبر خان د سلی

مبارزینو ښار کابل ته دانګلیس دهغو پوځونو دننوتو په نه مارش
ښخه‌و نه‌نیسي. چې انګلیسان ئې دخپل اعتبار او پرستیژ د بېرته را
ژوندي کولو د پاره ضرور ی ګڼې. دهمدې موافقې له مخې د ۱۸۴۲ م
کال دسپتمبر په میاشت کې دجنرال سیل، جنرال پالک او جنرال ناټ
پوځونو د کابل په جادو کې مارش وکړاو دخپلې تباه شوی ارادو او ـ
او مالي زیاتو تاوانو نو په بدل او انتقام کې ئې یو زیات شدید تعمیر و
نه‌داو ر په لمبو کې ایري کړل، همدارنګه یو ګڼ شمیر بې ګنا کسان ئې
دتیغ څخه تیر کړل. خو داچې تیري کوونکو ته الهام بخښونکی
سبق ور کړشوی ؤ دوی بیا داجرأت ونکړ چې په افغانستان کې پاتې
شي. هماغه ؤ چې د ۱۸۴۲ م کال په منی کې دخیبر تنګی له لاری کډې وړې و
زر دافغانستان څخه و تل .

امیر دوست محمد خان د ۱۸۴۳ م کال په سر کې وطن ته راغی او د
دویم ځل له پاره د کابل پر تخت کښېنوست.

# لومړی فصل

## ب – دبرتانوی استعمار له خوا د افغانستان دنیولو عوامل :

دنولسمې پیړۍ دلومړۍ لسیزې ډیره مهمه پیښه، چې په تولهختیځه او لویدیځه نړۍ کې دتوجه وړ پیښه بلل کیده دناپلیون پلان او نقشه وه چې له یوې خوائې اروپا او له بلې خوائې ختیځ په تیره بیا هندوستان تهدیداوه. انګلیسي نمایندګان دناپلیون دنقشې دناکامولو دپاره ایران او افغانستان ته راغلل او دهغه پر اختیا غوښتنود سیسو دخنثې کولو دپاره لازم تدبیرونه ونیول شول. (۱)

په همدې وخت کې پر هندباندې ددراني پاچاشاه زمان یرغلو –

---

(۱) سیدقاسم رښتیا، په نولسمه پیړۍ کې افغانستان، کابل، ۱۳۴۱ شمسي، ۱۲۵ مخ.

نه‌ددی‌سبب‌شول‌چی‌دبر تانوی اسپراتوری وا کمنوتو جه‌د افغانستان‌سوق‌الجیشی‌اهمیت ته‌راو گرځوی .

برسیره پر دی‌تزاری روسیه‌او فرانسه‌دواړه استعماری هیوا دونه هم‌پدی‌پوهیدل‌چی‌دبحرله‌لاری په انگلیسانو باندبرتری‌نشی حاصلولی‌مگر پر ته‌له‌دی چی‌دوی‌دوچی له‌لاری‌پر هغوی باندی سوفقیت‌لاس‌ته‌راوړی . همدارنگه بر تانوی مقاماتو په‌همدی وخت کی‌نړی‌ته‌داسی‌وښوده‌چی‌افغانستان او فارس دواړه‌دارو پا نه‌هندته‌دیوی‌لوی لاری په‌توگه‌گڼی . (۲)

په‌افغانستان کی دانگلیسانو سیاست‌دناپلیون ترقطعی‌ماتی‌پور ی‌دی‌ته‌متوجه ؤ چی‌دسدو زیو مقتدر دولت ژوندی‌نه‌شی‌او د دغه‌مقصدد پاره‌ئی ایران‌دخپل لاس‌اله‌گرځولی‌و ،او دهرات‌دنیو لو دپاره‌ئی کله‌ناکله‌دغه هیوادتشویقاوه.خوکله‌چی‌دناپلیون و یره‌له‌منځه‌ولاړه‌انگلیسانو دبی‌تفاوته‌سیاست‌له‌مخی‌په‌تهران کی خپل‌نفوذله‌لاسه ورکړاو تزاری روس دترکما نچی تړون د(۱۸۲۸ م ) کال‌پر اساس‌خپل‌نفوذدایران‌پرحکومت باندی‌دیوه تحت‌الحمایه هیواد په‌شان‌تحمیل کړ . اوس نو هرات‌بیادتزاری‌روس‌په‌تحریك‌دایرانیانوپه‌واسطه تهدیدیده.(۳)له

---

(۲) اصغراچ بلگرامی،افغانستان و هندبر تانوی، کابل ،۱۳۶۱، ترجمه‌عبدالوهاب فنائی ،ص۲۹ .

(۳) محمدحیات‌خان،حیات‌افغانی، کابل، ۱۳۶۲ ،ترجمه‌محقق فرهاد ظریفی‌او محقق عبداللطیف‌طالبی، ۱۳۶ - ۱۳۹ مخونه .

همدی‌وخت‌و روسته‌دبرتانیی سیاست‌د افغانستان او ایران په
برخه‌کی بدل شوا و دبرتانیی نږدی مراقبت ئی په ۱۸۰۸
کی ایجاب کړا و دنږد یوالی د پاره ئی خپلی هڅی پیل کړی
له‌یوی‌خوا دبرتانیی استعمارگرهیواد دخپل پرمخ‌تللو نکی‌صنعت
دپاره دمارکیټو نو دپیدا کولو به‌لټه کی‌شو ،دبلی‌خوا دتزاری
روس‌دپراختیا غوښتنی هڅی‌هم په‌اروپا کی‌متوقفی‌شوی‌نو
هغوی خپله‌تو جه‌دمرکزی اسیاو خواته راوگرځو له . دلته
ایران لومړی‌هیوادؤ چی دتزاری‌روس تمایل ئی ځانته‌واړوه
ځکه‌چی‌په هغه‌باندی مدیترانی‌ته‌دننو تللو لاری‌و تړل شوی‌او
گرمواوبو ته درسیدو په‌خاطر یی‌خپل‌مسیر دخلیج‌فارس له‌لاری
وټاکه.د ۱۸۲۹ م کال داکتوبر په‌میاشت کی دجگړن دی‌لسی
ایوانس کتاب‌چی په‌برتانوی‌هندباندی‌ئی.دتهاجم‌امکان څیړه، نشر
شو .مؤلف‌په‌دغه‌کتاب کی دتزاری روس‌تهاجم‌ته دافغانستان
په‌شمال‌باندی دکسپین‌دسیمی نه‌دکیف او بخارا (منځنی‌اسیا ) له
لاری اشاره‌کوله . (م)

دبرتانوی هندگورنرجنرال د تزاری روس دپشاکولو د
پاره‌دپیسو پوره صلاحیت درلود خودتهاجم اولښکرکشی
صلاحیت‌ئی دلندن‌داجازی‌پرته‌نه‌درلود ه.دده‌لومړی اقدام‌داوه
چی‌کپتان کانولی Capt. Cannoly او الکساندربرنس‌ئی

---

(م) ،افغانستان و هندبرتانوی ، ص ۷۸ .

افغانستان او منځني اسیاته راو لیږل چې په دې توګه خپل تجارت د
سند دریاب له لارې په منځني اسیا کې پیاوړی کړي او په دې توګه
وکړای شي چې د تزاري روس تجارت او سیاسي نفوذ په کابل
خیوه او بخارا کې دخپلو نوسرمسخا مخ کړي او پر ځای ئې خپل
تجارت او سیاسي نفوذ ته پراختیاورکړي. (٥) په عین حال کې
انګلیسي نمایندګان موظف شول هغه سیمې چې د رو دسنداو امو دریا
ترمنځ پرتې دي، په تجارتي ـ سیاسي او ستراتیژیکي لحاظ و څیړي ـ
همدارنګه په ټوله منځنۍ اسیا کې د جاسوسۍ شبکه وګمارل شو مچې
انګلیسي حکومت د سیمې د و رځنیو پیښو څخه خبر کاندي.(٦)
په دې وخت کې برتانوي و اکمن د منځنۍ ختیځ مخصوصاً د منځنۍ
اسیاد جریاناتو او پیښو څخه دې نتیجې ته رسیدلي و و چې د افغانستان
په بر خه کې دوې لارې موجودې دي : لومړۍ دا چې دافغا ـ
نستان د هندوکش غر و سلسله د هندوستان په شمال غرب کې یوه
طبعي پوله او مانع ګڼل کیږي هغه بایدو نیول شي او د برتانوي هند
سره یو ځای شي. دو یمه لاره دا چې افغانستان مستقیماً په یو ملاس
لاندې هیو اد بدل شي .(٧)

---

(٥) افغانستان وهندبر تانوي ، ص ٧٩ .

(٦) پورتنی اثر ، ص ٨٠ .

(٧) ژرژ لیخا فسکي، تاریخ خاور میانه، تهران، ١٣٣٧، ترجمه
داکتر هادي جزایري ص ١١٢ - ١١٣ .

په هر حال په ۱۸۳۸ م کال کې ایرانیانو د تزاري روسي د حمایې په اثر هرات محاصره کړ، ځکه چې ایران د قفقاز په سیمه کې ډېر مساحه له لاسه ورکړې وه او د هغې د جبران د پاره ختیځ پلو کې افغاني سیمو ته متوجه شول چې دغه خساره د افغانستان څخه جبیره کاندي. تزاري حکومت دوی د دې د پاره تشویقول چې له یوې خوا د دوی پام د شمالي نیولو سځکو څخه واړوي، له بلې خوا په هرات باندې د ایرانیانو د تسلط په صورت کې د تزاري حکومت غیر مستقیم نفوذ هم د برتانیې موقف په هند کې تهدیداوه. (۸).

د نولسمې پېړۍ د هغو سلګونو جګړو او پېښو عوامل چې په نړۍ کې د زښتو ډېرو بدبختیو او تاوانونو سبب شول شاید یو عامل ئې هم په اروپا کې د ناسیونالیزم او وطنپالنې افراطي حس وي چې په دې پېړۍ کې ئې دغه ټولې قارې نیولې وې. (۹)

د اروپا د و چې په مختلفو هیوادو کې پر له پسې صنعتي انقلابونه منځ ته راغلل او د زیاتو پرمختګونو سبب شول چې د هغې جملې نه په دې سیمه کې د نوو اصلاتو نسبتاً سریع پرمختګ منځنۍ اسیا ته د اروپائیانو راتګ ګړندی کړ او د استعمار منګولې ئې د اولسونو په ګریوانو کې ورښخې کړې.

---

(۸) ، افغانستان و هندبرتانوی، ص ۸۲.

(۹) هوبردشان، پایان امپراتوری های استعماری، تهران، ۱۳۴۶، ترجمه علی خ دمه، صفحه ۱۸.

همدا رنګه‌ارو پائی قدر تو نو داستعمار ی سر حلی د پیل نه‌داسی نتیجه‌و اخستله‌چی‌داسیاو چه‌د کمز و رو ز ماسدار انو له‌خوا اداره کیږی،نو په‌دی‌تو ګه‌دو ی‌د پر اختیاغو ښتنی‌او دهیو ادو دفتح کو لو او استعمار و لو په‌فکر کی و لو یدل.(۱۰)

او س‌دلته‌دبر تانو ی هند ګو رنر جنر ال د ۱۸۳۸ - م کال‌د اکتو بردلو سړی‌نیټی‌د هغی‌اعلامیی‌سهم ټکی‌ر ااخلوچی‌په هغی کی دافغان‌او انګلیس‌دلوسړ ی‌جګړ ی‌عمده‌عو امل په‌ګو ته‌شو ی‌دی :

## د سیمله‌ی اعلامیه :

( د ۱۸۳۸ م کـال دا کـتـو بـر لـو سـړی‌نـیـټـه ):

د هندعز تمن ګو رنر جنر ال او دعالی‌شو را په‌سو افقه‌یو ه‌قطعه بر تانو ی قو ادخدمت په‌منظو ر دسندد ریاب په‌اوړدو کی دده‌دعالی مقام په‌لاز م‌ګڼلو سره د ځینو چارو دتر سره کو لو دپاره‌تیار ه‌ده.دا یو ښکار ه حقیقت‌دی‌چی د ۱۸۳۲ م کال تړو ن دبر تأنیی حکو مت له‌خوا دسندا‌میر دبهاو لپو رنواب او‌مهار اجه رنجیت سنګ‌تر منځ دسند په‌در یاب کی د کشتیر انی‌د پر ا نستلو او دهغه دتضمین د هدف په هکله‌لاسلیك‌شو ی‌دی‌او‌په‌دی سیمه کی‌به دسوداګر ی‌د پر - اختیاپه‌بر خه کی‌پـو ره‌اسـانتیاو ی منځ ته‌ر اشی دانګلیس‌ملت‌د پا ره‌به‌په‌منځنی ختیځ کی‌د پوره قدرت‌اوسشر و ع نفو ذ ز مینه‌بر ا- بر ه‌شی - او دا کار طبعاًد ګنهو دتبادلی‌په‌منظو رصو رت‌نیسی‌په‌دی

---

(۱) افغانستان‌وهندبرتانوی ، ص ۲۱ - ۲۲

لحاظ چې د افغانستان قانوني حکمرانانو همکاري د تړون د تحکیم او مؤثریت د پاره ضروري ښکاریده. د ۱۸۳۶ م کال په اخیر کې سر الکساندر برنس د انگلیس نماینده ته ماموریت ورکړ شو چې د امیر دوست محمد خان سره د سوداگرۍ په برخه کې خبرې وکړي.

په همدې وخت چې برنس لا د لارې په اوږدو کې و گورنر جنرال ته خبر راغی چې امیر دوست محمد خان د برتانیې په پخواني متحد رنجیت سنگ باندې یرغل کړی دی. طبیعي ده چې رنجیت سنگ هم له تیري نه د دفاع له پاره سوله نه ده کړې، خو بیا هم دا ډار موجود دی چې د جنگ لمبې به د سرحد په هغو سیمو کې پورته شي چې هلته د برتانیې د سوداگرۍ د پراختیا د پاره توقع موجوده ده.

د برتانیې حکومت د سوله ییز مرام له مخې او د جنگ د مخنیوي په خاطر تصمیم ونیو چې برنس د امیر دوست محمد خان سره د دغو جاري مسئلو په برخه کې له نږدې وویني او امیر په دې وپوهوي چې که چیرې د سولې لاره ونیسي د برتانیې حکومت به د دوی دواړو ترمنځ ټولې مسئلې د دوستۍ له لارې حل کړي. مهاراجه رنجیت سنگ د هغې خاصې عقیدې له مخې چې د انگلیس ملت په دوستۍ ئې لري د ځنې پرته ئې د گورنر جنرال په پیشنهادونو باندې رضائیت وښود.

د گورنر جنرال په عقیده د ایرانیانو تیری په هرات باندې هم دارنگه د دوی فعالي دسیسې چې په ټول افغانستان کې د دوی د قدرت او نفوذ د پراختیا له پاره روانې دي حتی د رود سند نه را دیخوا هم

دتيري فکر لري.ایرانیانو نه یواز ی دبر تانیی دنما یندگی سفیر او دافسرانو هیڅ خپه کړ بلکې هغه پلانو نه چې دخپلو طرحو لاند ئې نیولی دی دلوی بر تانیې دهغو تولو اتحادی پرنسیپونو پر خلاف دی چې دبر تانیه سره ئې لری.

ورو سته له دې چې بر نس یوه سلسله ناکامي مذاکری له امیر سره تر سره کړی ښکاره شوه چې امیر دایران په تشویق دمهاراجه رنجیت سنگ سره دشمني کوی - همدارنگه غلطی ادعاگاني کوی چې گورنر جنرال دمهاراجه رنجیت سنگ سره دوستی او همکاری لری. بر سیره پر دې امیر دخپلو حکمو دپراخولو نیت او مطالبې هم لری او په عین موقع کې ئې په ښکاره توگه تهدید کړی دی چې دخپلو پلانو او طرحو دپلی کولو دپاره چې هرڅوک سره باتدې یو کومکونو ته ضرورت شی نو هغوی به تر لاسه شی. همدغسې امیر دایران د نقشو او طرحو نه په افغانستان کې حمایت کوی چې داغیر دوستانه عمل دبر تانوی هند دگټو پر خلاف دی او بر تانوی حکومت ئې په هند کې دتشویش سره مخامخ کړی دی.

په داسې حال کې چې دی دموضوع دحساس والی څخه پوره خبر لری ، بیا هم دهند دحکومت گټې او نظریات په پام کې نه نیسي. مخکې له دې چې دبر نس دماموریت هدفونه تر سره شی دی مجبور شو چې کابل پریږ دی.

او س نو ښکاره خبره ده چې دبر تانیې حکومت نور نشی کولای

چې دسهار اجه او دوست محمد خان ترمنځ سالمه‌فضاء منځ ته راولی.
د کابل و اکمن دشمنانه سیاست داسی ښئی چې تر هغه‌وخته‌پورې
چې دی‌د کابل پر تخت‌باندی‌ناست‌وی‌موږ به‌د دی هیله‌نلرو چې
زموږ‌په گاو نډیتوب کی‌ارامی‌شی‌او یادهند دامپراتورۍ‌گټی
ضررنه په‌امن کی‌پاتی‌شی گورنر جنرال په‌دی‌موقع‌لازم گڼی چې
په‌هرات‌باندی‌دایران عملیاتو ته‌خپله‌توجه وگرځوی .

د خو سیاشتو راهیسی‌په‌هغه‌ښارکی دایران عملیات‌جاری‌دی
او په هغه‌ځای‌باندی یرغل‌یو بیر چمانه‌تجاوز دی.د انگلیس‌دسفیر
د پر له پسی‌اعتراضونو سره‌سره بیاهم‌دوی خپلو عملیاتو ته ادامه
ورکړی‌ده دسفیر ټول کوښښونه‌ناکام شول‌او دده‌په نسبت‌بی
احترامی‌وشوه. دبرتانیې دولت‌دایران‌سره خپل روابط‌شکولی
دی‌او پس‌هرات کلابندی.برتانیې‌دایران‌د‌وسلحو‌قواؤ وړاندی
تگ‌په‌افغانستان کی دخپل‌ځان‌دپاره دښمنانه عمل‌گڼی‌او په‌رسمی
توگه‌هم‌دبرتانیې‌دپاچاهی حکومت‌له‌خوا دایران‌پاچا ته خبرور
کړشوی دی .

د کندهار حکمرانان (ددوست‌محمدخان‌ورونه)دایران‌دپالیسی
حمایت‌کوی او په هند کی دبرتانیې‌ملت‌دگټو پر خلاف‌عمل‌کوی
او په ښکاره‌توگه‌ئی په‌هرات کی‌د ایران عملیاتو سره همکاری
وکړه .داچې‌دبرتانیې‌نماینده‌د روابطو دخرپړتیا په‌نتیجه کی د کابل
څخه‌رخصت‌شو گورنر جنرال‌درک کړه چې دبرتانیې په‌حدودو
باندی دخارجی‌دسیسو او تیریو دمخنیوی‌دپاره لازم‌تدبیرونه

ونیسي. د بارکزي سردارانو څخه چې حکومت ئې د سدوزیو نه
غصب کړی دی، ات خوښ او خوشحال نه دی او د دوی تر منځ نفاق
هم موجود دی او د برتانیې د پاره په هیڅ لحاظ ګټور متحد کیدای
نه شي، مګر تر هغه وخت پورې چې د برتانیې د ګټو پر خلاف یې
عمل نه کولو هغوی ته درنښت او احترام مو ورته کاوه، او س چې
زمونږ د اراسې د خرابولو او خپل ځانته د پراختیا غوښتنې فکر لري
نو مونږ مجبور یو چې په اقداماتو لاس پورې کړو او د دغه مقصد
د پاره مو شاه شجاع چې محبوبیت ئې ثابت دی په نظر کې نیو او مکناټن
مو د جون په میاشت کې رنجیت سنګ ته ور و لیږه چې هغه هم په دغه
مقصد کې شریک شي او په نتیجه کې د ری اړخیز تړون د برتانیې،
رنجیت سنګ او شاه شجاع تر منځ لاس لیک شو او مسئلې په ښه شان
حل شوې.

همدارنګه د سند د امیرانو په نسبت فیصله وشوه چې شاه شجاع دې
د هغوی خپلواکي و مني او د هغوی ضمانت مو هم کړی دی. دغه راز
د هرات او د هغه د خپلواکۍ په نسبت هم فیصله او ضمانت شوی دی.
په دغه ډول یقین لرو چې د هند پولې به آرامې وي، تجارت به ښه او
په منځنۍ ختیځ کې به د برتانیې مشروع نفوذ تأمین شي. اعلیحضرت
شاه شجاع الملک به د خپلو قواو سره یو ځای افغانستان ته داخل شي او
د باندنیو مداخلو په صورت کې به د برتانیې قواو په ذریعه کومک او
حمایه کیږي.

گورنر جنرال هيله‌لري چې شاه‌شجاع به‌ژر تر ژره په خپله پا-
چاهي‌باندي کښيني. داچې‌يو وار ی‌دی‌قدرت‌ته‌رورسيده‌او دافغا-
نستان ازادي او تماميت برقرارەشي له هغه‌ورو سته به‌بر تانوی
قواوی و يستل‌شی .

دهند عزتمن گورنر جنرال په‌امر

دهندحکومت سکرتر . (۱۱)

(۱۱) په نولسمه پيړۍ کی‌افغانستان، ۱۳۲-
۱۳۳ مخونه ، همدا رنگه افغانستان و هندبر تانوی
ص ۳۲۹ - ۳۳۴ .

## ج : په پېښور کې د انګلیس استاځي الفنستن او شاه شجاع ترمنځ دفاعي معاهده :

کله چې ناپليون په ظاهره له نړدې ختيځ داو بـو لـه لاري نه له خپلې کاميابۍ څخه ناامیده شو نو په دې فکر کې شو چې خپل پلان او نقشه د روسيې له خوا پلې کړي چې د همدې مقصد د پاره روسيې ته د دوستۍ له لاري نږدې شو او په ۱۸۰۷ م کال کې د فرانسې او تزاري روس ترمنځ د تلسيت قرارداد - Tilist treaty - لاسليك شو . په دې قرارداد کې دالکساندر او ناپليون ګډ يرغل په برتانوي هندباندې ترتيب شوی ؤ . ددغه قرارداد په او اسطه د فينکنستن قرارداد - Finkensten Treaty - چې څو مياشتې وروسته دفرانسې او ايران ترمنځ دتزاري روسيې پرخلاف منځ ته راغلی ؤ داعتبار څخه غورځيده . د فينکستن قرارداد پر اساس فرانسې ته اجازه ورکول کيده چې د افغانستان له لاري پر هندباندې يرغل وکړي او په مقابل کې دفرانسې دولت دايران دولت ته وعده ورکړې وه چې دايران خاورې نه به دتزاري روسيې په ايستلو کې همکاري کوي . (۱۲)

برتانوي استعمارچيان چې په پيرته ئې د هند شمالي او شمال غربي سيمې يو پر بل پسې لاندې کولې دفرانسې ددغو اقداماتو د ناکامولو

---

(۱۲) Gregorian, Vartan, The Emergence of Modern Afghanistan, California 1969, P.94.

دپاره خپلی هلی ځلی پیل کړی چی په دی ترڅ کی مټاکاف Metacalf
دپنجاب سك د رباره، جان ملكم John Malcalm ایران ته او
مونت ستوارت الفنستون افغانستان ته شول . (۱۳)

الفنستون چی د بر تانیی دشرق الهند متصرفاتو په ملکی ـ سیاسی او
نظامی چارو کی فوق العاده صلاحیت درلود ـ د ۱۸۰۹ ـ م کال د فبروری
په میاشت کی په پیښور (دافغانستان په ژمنی پایتخت) کی د شاه شجاع
سره ولیدل او د یو دتدافعی تړون دلاسلیك کولو د پاره کار پیل
شو او په نتیجه کی دغه لاندی تړون د شاه شجاع او الفنستون تر منځ
د ۱۸۰۹ م کال د جون د میاشتی په ۱۷ نیټی لاسلیك شو چی د هغه مهم
ټکی دا دی :

«داچی دفرانسی او ایران دولتونو تر منځ دیو ه تړون دلاسلیك
کولو په نتیجه کی فرانسه غواړی چی دایران او افغانستان له لاری
پر هندباندی یرغل وکړی، ددی دپاره چی دفرانسی او ایران دغه
احتمالی یرغل مو شند کړی وی دافغانستان او برتانیی دواړه هیوادونه
دګډی دفاع په مقصد دغه لاندی مواد په خپلو کی لاسلیك
کوی :

۱ ـ داچی دفرانسی او ایران دولتونو د کابل پر خلاف یو قرار
داد لاسلیك کړی دی نو که چیری دوی وغواړی چی دافغانستان

---

۱۳ ـ اولس یار، انګریزی استعمار او افغانستان، کویټه، ۱۹۷۹،
۳۲ ـ ۳۳ مخونه .

د خاورې څخه دهند خواته تیرشي دافغانستان پاچا به دغه سخت مخالفت کوي او اجازه به نه ورکوي چې دا کار عملي شي.

که چېرې ایران او فرانسه د کنفدراسیون د مېتورله مخې دافغا نستان خواته دتیریې په هوړل حرکت وکړي دبرتانیې دولت به د زړه له کومې هغه کوي چې هغه نابوداو په شا بیولو ته مجبور کړي او هغه مصارف چې دداسې خدماتو دپاره ضروري دي ترتوانه او - قدرت پورې د انګلیسانو په غاړه دي - او ترڅو چې کنفدراسیون ادامه لري ددې قرارداد مواد هم داعتبار وړ دي او دواړه خواوې به پرې عمل کوي.

۳ - ددواړوهیوادو تر منځ به دوستي او اتحاد دهمیشه دپاره وي یو دولت به دبل دولت په کورنیو چارو کې مداخله نه کوي او دافغانستان پاچا به فرانسوي اتباعو ته اجازه نه ورکوي چې افغانستان ته داخل شي». (۳۱)

داهم دیادولو وړده چې دغه پوړ تنی تړون عملي جنبه پیدا نکړه - ځکه چې ناپلیون د روسیې له خوا هم په خپل پلان او نقشه کې ناکام شو او له مسکو نه په ۱۸۱۲ م کال کې بیرته فرانسې ته بې له دې چې کوم نتیجه تر لاسه کړي ستړی ستومانه ستون شو او بالاخره هند ته

(۳۱) افغانستان و هندبرتانوی، ص ۳۱۳-۳۱۵ .

درسیدو خوب او خیال ئې په ۱۸۱۵ م کال دو اترلو په و روستې

ماتې خوړ لو سره له منځه ولاړ. (۱۵)

## الف: په منځنی اسیا کې د استعماري دولتونو د پراختیا غوښتنی هڅې:

کله چې په فرانسه او انګلستان کې بورژوازي پاخونونو تحقق و موند په اروپا کې د دښمنیو او نورو هڅو اود ته دلاس اچونې استعماري دوره پیل شوه د همدې وخت وروسته منځنی اسیا د اروپائی استعمارګرو قدرتونو د رقابت ځای وګرځید. د سو اصلاتو نسبتاً سریع انکشاف هم دنړۍ تولو برخو، مخصوصاً منځنی اسیا ته د اروپائیانو د راتګ جریان ګړندی کړ. فرانسویانو، انګلیسانو او تزاري روسیې

هریو تهران د دربار ته لاره پیدا کړه چې د ایران دوستي تر لاسه کړي. مګر په تهران کې دا تولې هڅې د یر ژر د ناپلیون د ماتې خوړ و نو، په هند باندی د افغانستان پاچا شاه زمان یرغلونو او په منځنی اسیا کې د تزاري روسی د پراختیا غوښتنی د سیسی د غه حالات لا پسې پیچلي او ګډ وډ کړل.

ناپلیون د ځوانی د وخت څخه دا ارزو درلوده چې ختیځ و ملکونو ته راشی او د هند بنکلی هیواد چې اروپائیانو «طلائی تاج او طلائی مرغې» بلله، لاس ته راوړی خو برتانوی استعمارچیان لا د مخه د ۱۵۹۹

---

(۱۵) Louis Dupree, Afghanistan, New jersey, 1973 P. 363.

میلادی کال هندته راغلی و و او د هند دنیمی و چی یو ه بر خه ئی په لاس

کی درلو ده . د فر انسی بو رژ و از ی حکو مت مدیر ه هیئت تصمیم

و نیو چی دا نگلستان د امپر اتو ر ی په کمز و رو بر خو کی دهغه

هیو اد پر خلاف جگړو ته ادامه و رکړی . ناپلیو ن د دغه کا ر د پار ه

هند پیشنهاد کړاو مدیر ه هیئت د ۱۷۹۸ ـ م کال د مسی په میاشت

کی په مصر باندی لښکر کو ل تصو یب کړل ( * ) او خو و رځی

و ر و سته یی خپل تجاو ز په سو ر یه او مصر باندی چی په هغه و خت

کی دعثمانی تر کیی په امپر اتو ر ی پو ر ی تړلی ؤ پیل کړ .(۱۶)

او په عین و خت کی ئی دایر ان پاچا او تیپو سلطان سر ه چی د هند په

جنو ب کی ئی سلطنت درلو د ، خپلی خبر ی د نماینده گانو په ذ ریعهٔ

پیل کړی . فر انسو ی نمایندگانو نه یو از ی په ایر ان او د هند په جنو ب

کی فعالیت کاو ه ، بلکی دفر انسی سفیر په ر و سیه کی هم په اقد امات و

لاس پو ر ی کړی ؤ او حتی دافغانستان دامپر اتو ر ی سدو زی پاچا

شاه زمان د ر بار ته ئی هم پیغام او پیشنهاد ر الیږلی ؤ او له دهٔ نه ئی هند

ته د تللو په بر خه کی د همکار ی و عده غو ښتی و ه . دناپلیو ن د دی

تو لو هڅو څخه مقصد دا ؤ چی دفر انسی ، ایر ان او افغانستان او نو ـ

---

* ـ ناپلیو ن به و یل : هر څو ک چی د مصر و اکدار شی ـ د هند و اکدار هم دی .

۱۶ ـ ا ـ افیمو ف ، ایلیاگالیکین ، تار یخ عصر جدید ، کابل ، ۱۳۶۲ جلد او ل ، تر جمه فر یدو ن شایان ، ص ۹۵-۹۶ .

روسیه‌یي هیوادو ترمنځ دبرتانیې پرخلاف یو کنفدراسیون تشکیل
کړي او په دې توګه انګلیستان د هند څخه وباسي . (۱۷)

د هندبرتانوي حکومت چې تر یوې په دې وخت کې تر ډیرې هلې ځو-
ری اد مخه شوی او په زړه پورې کتنه ئي داتوول جریانات تعقیبول -
مخصوصاً دافغانانو پرغلو نه هغوی ته یو لوی خطر ګڼل کیده. برتا-
نوي مقامات د ډیر غور او مشورو وروسته دې نتیجې ته ورسیدل
چې دایران دوستي ترلاسه کړي او دافغانستان او فرانسې داتحاد
مخه ونیسي. همدارنګه که چیرې ایران تشویق شي د افغانستان د
غربي پولو د پارچې تهدید کیدای شي چې په دې توګه به شاه زمان
ونه کړای شي چې بیا پر هند باندې یرغل راوړي، چې په دې قسم به د
فرانسې د دسیسو څخه د برتانیې پرخلاف په دې سیمه کې ویره له منځه
ولاړه شي. د همدې منظور د پاره د هند برتانوي حکومت په ۱۷۹۸-م
کال کې دلارډ ویلسلي تر قیادت لاندې د ختیځ هند شرکت استاځی
میرزا مهدي علیخان په ذریعه د ایران حکومت سره خپلې اړیکې
ټینګې کړې . د هغوی په تعقیب برتانوي حکومت کپتان جان ملکم
د ختیځ هند شرکت له خوا مامور کړ چې د ایران د
پاچا دې ته اړ کړي چې د افغانستان په قلمرو (هرات) باندې یرغل
وکړي او د شاه زمان په مخکې یا هند ته د تللو په لاره کې خنډونه
پیدا کړي . په دې توګه کله چې شاه زمان د ۹۸-۱۷۹۹ م کالونو په
ژمي کې راولپنډۍ او لاهور ونیول او د امرتسر له لاري پر ډهلي

---

(۱۷) افغانستان و هندبرتانوی، ص ۲۶ .

نه‌دتیاری نیولو په‌حال کی ؤورته‌خبرورسیدچی‌فتح‌علی‌شاه‌د ایران‌پاچاپه‌خراسان‌باندی بریدکړی،او هرات‌تر تهدیدلاندی‌دی او غواړی تبیتیدلی شاه‌محمود (دشاه زمان ناسکه‌ورور) پاچا کړی‌چی‌په‌دی‌توگه‌استعمارچیانو او هندارنگه دهغوی‌گوډاگیانو وکړای‌شول په‌هندکی دبرتانوی استعمارچیانودتکواو او پوره ماتی‌مخه‌ونیسی.اوافغانی‌پو څوانه ډیرژرد هندځخه راوگرځی.(۱۸)

دکپتان مکم‌ماهورپت‌په‌ایران کی په‌موقتانه‌توگه ترسره‌شو او درشوت‌په‌ذریعه‌ئی وکړای‌شول چی‌ایران‌یوه تړون نه‌راضی کړی.دغه‌تړون په ۱۷۹۹ م کال کی‌لاسلیک‌شو .دتړون دمواد و پراساس‌فرانسویانو ته‌اجازه‌نه‌ورکول کیده‌چی‌ایران‌ته‌داخل‌شی.

دگردی‌قراردادو روستنی نهائی‌رسمی‌پراوتیرنه‌کړ.څنگه چی دایران‌درباره ته‌هغه‌گټورنه‌ونو ډیرژرهیرشو .ناپلیون‌په‌خپل اقدام‌کی‌ناکام‌شو او دنیل (ابوکیرا) په‌جنگ‌کی‌فرانسوی بحری‌قواو دبرتانوی قواو په‌ذریعه‌په‌کلی‌توگه‌ماتی‌وخوړه‌او ناپلیون‌په‌پټه‌په‌ډیرمشکل‌سره ۱۷۹۹ م کال کی‌خان پاریس‌ته ورساوه (۱۹).

---

۱۸ - افغانستان‌او هندبرتانوی، ۲۸ مخ .

۱۹ - جواهرلعل‌نهرو - نگاهی‌به‌تاریخ جهان ، دوهم‌بخش ، تهران ، ۱۳۴۳ ش ، ترجمه محمود تفضلی ، ص ۹۱۸ .

د ملکم ... و ریت نه و روسته ایران په تدریجی توګه د تزار ی روسیې تر تاثیر لاندې راغی مګر بیا هم دغه هیواد په داسې ... و قعیت کې قرار نه درلود چې دغه لوری نه په هند کې بر تانوی حکومت د تزار ی روسیې یا فرانسې له خوا تهدید شي .

په دې ... و قع چې د نړی کې کیچ ز یات شوا و د اروپا ئی استعمار ګر و هیوادو تر منځ استعمار ی جنګ روان ؤ ، درانې سرداران هم د استعمار چیانو دلسو ن او دیو بل پلاس کې نیو لو او د اجیر و پخو نو استخدا ... لو په ذریعه خپلو کې سر دبې اتفا قه شو ل او د درړ نیانو دعظمت دوره پای ته ورسیده. دافغانی حکومت په کمز و رتیا سره انګلیسانو ته موقع پیدا شوه چې خپل استعمار ی قدرت په هند کې ټینګ او هغه ته پراختیا ورکړی .

د ګیو ډیو په همدې وخت کې مهاراجه رنجیت سنګ په پنجاب کې دیو خپلوا ک سلطنت بنسټ کیښو د چې ډیر ژ ر د هند په شمال کې دیو ژ اندار مقوت په توګه بدل شو چې د بر تانیې او کلکتې حکمر انانو د پاره ډیر اهمیت درلود .

کله چې ناپلیو ن د نړ دې ختیځ د بحر له لار ی پخپله نقشه کې نا کام شو په دې فکر کې شو چې د فارس او افغانستان له لار ی پر هند باندې خپل تیر ی عملی کاندې نو د همدې هدف د پاره فرانسه او ایران د فینکستین د تړون په اساس د روسیې پر خلاف سره متحد شول .

د تړون د ... ادو له مخې فرانسې دایران د خاو ر ی څخه د تزار ی روسیې په ایستلو کې کمک کاوه .

همدارنګه دایران پاچا وعده وکړه چې فرانسې ته په هندباندې دیرغل په وخت کمک کوي.

خو ... باشتي وروسته جنرال ګاردنې دیو فرانسوي نظامي په هم هیئت په مشرۍ ایران ته ورغی او داسې ئې وښودله چې فرانسوي جنرال به لوښړۍ ایراني اردو د ترېبې لاندې ونیسي او وروسته به یادفرانسوي اردو په ګډه ونډ افغانستان له لارې پرهندباندې یرغل یوسي. او په عین وخت کې د ایران دولت د افغانستان

د داخلي تفرقې او کمزوري تیا څخه ګټه وکړه او د خراسان ولایت چې تر دې وخت پورې د افغانستان خاوره ګڼل کېده د افغانستان څخه جلاکړه او هرات ئې هم د تهدید لاندې ونیو. (۲۰)

څه وخت وروسته (۱۸۰۷ م) کال د تیلسیت ترون د ناپلیون اوالکساندر تر منځ د برتانیې پرخلاف لاسلیک شو او برتانیه ئې په اروپا کې د تېولو بدبخیو منشاء وبلله د تړون د روحیې په اساس الکساندر ته د ختیځ او ناپلیون ته د لویدیځ دامپراتور عنوان ورکړ شو او په عین وخت کې ئې الکساندر عثماني ترکیې، ایران، افغانستان او هندوستان ته متوجه کړ او په راتلونکي کال کې پرهند باندې د یرغل کولو د پاره د ایران او افغانستان له لارې نقشه طرح شوه. (۲۱).

---

(۲۰) ـ افغانستان و هند برتانوی، ۳۳ مخ.

(۲۱) رابرت روزول پالمر، تاریخ جهان نو، جلد اول، تهران ۱۹۷۱، ترجمه عبدالقاسم طاهري، ۶۹۳ مخ.

بر تانیه هم‌چی در قیبانوهلو حلو خخه‌بی‌خبر ه‌نه‌و ه ، دفرانسو یانو

داحتمالی‌تهاجم‌په‌صو رت‌کی‌ئی دپنجاب ـ افغانستا ن او ایر ان

حکو متو نو سر ه‌تماس‌تینگک‌کړاو لاز م تدبیر و نه‌و نیو ل‌شو ل . خو

در و سیی‌او فر انسی‌اتحادز یات دو ام و نکړاو په ۱۸۱۲ م کال کی

ناپلیو ن‌په‌ماسکو کی دپو ر ماتی سر ه‌مخامخ شو.بالاخر ه‌د ۱۸۱۵

میلادی کال دو اتر لوپه‌و ر و ستی‌ماتی‌خوړلوسر ه هنده ته‌در سیدو

خو ب او خیال‌ئی له‌سر ه و لاړ. (۲۲)

دا چی په‌منځنی‌اسیا کی دناپلیو ن خطر له‌منځه‌و لاړدهندخو اته

دتز ار ی ر و سیی‌تهدید دهغه ځای و نیو ، ځکه‌چی تز ار ی‌ر و سی

دپتر کبیر دو خت‌نه‌دهند د سمندر تو دو او بو ته در سیدو هیله در

لو ده‌چی دهمدغه مر ام تر سر کو لو دپاره د در دانیل دتنگی‌نه‌ر

نیو لی‌تر تر کستا ن‌پو ر ی‌گام په‌گام رادمخه شو او د ۱۸۰۷ م

کال دفاز س دتړو ن پر اساس او په‌۱۸۱۳ م کال کی د گلستان

دتړو ن‌له‌مخی‌دا یر ان دو لت‌شمالی بر خی‌یوپر بل پسی‌و نیو لی(۲۳)

په ۱۸۱۵ ـ م کال د / و ین / په‌جر گه کی‌بر تانیی تصمیم

و نیو چی‌با یدد هندو ستان‌خو اته‌دتز ار ی ر و سیی دپر مختگ مخه

و نیو ل‌شی.له‌بلی‌خو اتز ار ی ر و سیی هندته‌در سید و او دهغه

---

(۲۲) Louis Dupree, P. 369. W.K. Fraser Tytler, Afghanistan, London, 1967, P. 80

نیولو دپاره محافظه کارانه گامونه اخیستل او حاضرنه ؤ چې
بر تانیې داسپراتوری سره دوخت نه پخوا داسې تکړ و کړی چې
دجګړې سبب شی. تزاری روس بیاهم دایران پر خلاف جګړو ته
ادامه ورکړه او په ۱۸۲۸ ـ م کال کې دفارس دترکمانچې معا
هدې په ذریعه دخپلې خاوری دشمالی ځمکو زیاته برخه لاسه
ورکړه. دایران دولت په اخر کې مجبور شو چې دتزاری روسیې
سره سوله وکړی او ددې وروسته بیا دتزاری روسیې د لاس له
وګرځې. په داسې حال کې چې ددې نه پخوا دافغانستان پر خلاف
دانګلیس دلاس اله و. دتزاری روس په دغه تو له دوره کې دخپلې
نقشې دپلی کولو دپاره دایران دولت استخداماوه او تل به ئې د
ایران دولت دهرات د نیولو دپاره چې دهغه کلی شمیرل کیده
تشویق کاوه چې په دې توګه تزاری روسیه دایران په واسطه
هندا و د هندسمندر تو دو او بو ته خپله لاره برابره کړی (۳۳)
دتاریخ په دې حساس وخت کې چې امپریالیستی هیواد و دهند
دنیولو دپاره هلې ځلې درلودلې په افغانستان کې دسد وزیو او محمد
زیو ترمنځ دتاج او تخت او قدرت تر لاسه کولو دپاره سخت جنګ او جدال
روان ؤ چې دکورني مبارزو په نتیجه کې سرکزی قدرت
محمد زیو ته انتقال شو او دوست محمد خان په ۱۸۲٦ م کال کې دمر-
کزی چارو خپلواک قدرت په لاس کې واخیست او د افغانستان

(۳۳) افغانستان په نولسمه پیړی کې، مقدمه.

دټولو لو او یو ځای کولو دپاره ئې خپلې نه ستړې کیدونکې هڅې پیل کړې .

بر تانوی استعمارچیانو په منځنۍ اسیاکې د خپلوګټو دساتلو دپاره د نولسمې پیړۍ په لومړۍ سر کې زیار ایسته چې د منځنۍ اسیاد مختلفو هیوادو په بر خې کې سیاسی، اقتصادی ، فرهنګی او توپو ګرافی معلومات راټول کړی. دغه کار لومړی وار د ټ الفینستین دنولسمې پیړۍ په لومړۍ لسیزه (۱۸۰۹ م) کال کې تر سره کړ. دهغه په ادامه په ۱۸۱۹-۱۸۲۵ م کلونو کې یو انګلیسی هیئت دمو ر کر فټ او تر بیك په مشرۍ افغانستان ته راغی او دافغا- نستان او دهغه ګاونډیو هیوادو په بر خو کې ئې زیات معلو مات خپلو استخبار اتی ادارو ته وسپارل .الکساندر برنس دبر تانوی هندګو رنر جنرال خاص نماینده هم دافغانستان څخه په ۱۸۳۲-۱۸۳۳ م کالونو کې دخپلوجاسوسی هدفو نو دپاره مفصله لید نه وکړه.(۲۵)

بار کزی دوست محمدخان ورځ په ورځ مر کزی قدرت پیاوړی کړ خو بیا هم ده دافغانستان په یو ځای کو لو کې زیات مشکلات در لودل سدوزی کامران په هرات کې-بار کزی کند هاری ورو نه په کندهار کې بارکزی پېښو ر ی ورونه په پېښو ر کې د استعمار ی قدر تونو له خوا حمایه او تشو یقیدل . شا ه شجاع هم

(۲۵) Afghanistan past and Present, p 100.

د مباداو رځي دپاره په‌لو دیانه کی دبر تانیه‌استعماری قدرت‌له
خو اساتل کیده . نو کله‌چی‌امیر دو ست‌محمدخان دانگلیسا نو پیچلی
پالیسی‌سره داستعما ر ی گټو په خاطر توافق و نه نیود
په‌مخالفت‌ئی‌پیل‌و کړاو په ۱۸۳۳-م کال کی ئی‌د دو ست‌محمدخان
درا بر زو لو دپاره شاه‌شجاع او دهغه‌اجیرپوځو نه افغانستان‌خو ا
ته‌را مارش کړل .خو پخوانی‌شاه په‌خپل بر ید کی‌ماتی‌و خوړه او
خپلو بادارانو ته‌ئی بیا په‌لو دیانه کی پناه‌یوړه.(۲۶)
څو کاله‌و روسته په‌منځنی‌اسیا کی داستعمار ی قـو او انهو ل
بیاسخ په‌خر ابیدو شو -دافغانستان په‌غر ب‌هرات او دافغانستا ن په
ختیځ دسند په‌او ږدو کی داستعمار گرو له‌خوا دسیسی‌ر وانی
و ی چی‌دهمدی‌هدف تر لاسه‌کولو دپاره‌په ۱۸۳۷ - م کال کی
بر نس دسو داگر ی / هیئت / په‌رو ل کی ا فغانستان‌ته را غی اود
امیر سر ه‌ئی‌خپلی‌خبر ی‌پیل کړی .څه و خت‌و رو سته و یتکیو یچ
دتز ار نماینده‌هم کابل ته راو رسید.مگر داچی‌بر تانو ی نماینده
بر نس- امیر دو ست‌محمدخان‌دخپلو استعمار ی گټو او سیاسی‌مقصد و
دپاره‌سودمندونه‌لید-بی‌له کو مې نتیجی‌او تړو ن لاسلیك‌کولو بر
نو ی هند ته‌و گر ځیده.انگلیسان‌نه‌یو ازی‌په افغانستان کی‌نا کام
شو ل بلکی‌ددو ی مو قف‌په تهر ان کی‌هم درو س‌سفیر په‌ذر یعه
کمز و ر ی شو ی ؤ او دبر تانیه نماینده و نه‌کړای شول چی د

---

(۲۶) نفتو لاخالقین ، انگلستان دافغانستان پر ضد دتار یخ پانی،
مسکو، ۱۹۸۰، ۲۰ مخ .

ایران پاچاهمحمدشاه په هرات باندی د یرغل کولو تصمیم څخه و اروی

ایرانیانو د ۱۸۳۷ م کال دنوسبر په میاشت کی په هرات

یرغل وکړ محاصره یو کال و څندیده ولی د هرات په نیولو بریا

لی نه شول او د ۱۸۳۸ م کال دسپتمبر په میاشت کی بیرته ناکام

ایران ته وگرځیدل . (۲۷)

دیر تی په دنا کاسی سره دبر تانوی هندگورنر جنرال لارد اکلنـد

او دده مشاورین دی نتیجی ته و رسیدل چی دامیر دوست محمدخان

پر ځای داسی څوک د افغانستان پر تخت کښینوی چی هغه په ر ښتیا

سره د دوی استعمای گټو ساتند وی و ی . ددی هدف د ترسر

کولو د پاره ئی د ۱۸۳۸ م کال دا کتوبر دمیاشتی په لومړی نیته

دسملی اعلامیه نشر ته وسپار له او د افغانستان پر ضد ئی لومړی تیری

پیل کړه . (۲۸)

---

(۲۷) افغانستان و هند بر تا نوی ، ۹۹ - ۱۰۹ مخونه .

(۲۸) سیدقاسم رښتیا ، په نولسمه پیړی کی افغانستان ، ۱۲۸ مخ .

# دویم فصل:

## الف: د افغان او انګلیس د لومړی جګړی په وخت کی د افغانستان سیاسی وضعه:

۱۷۴۷ – میلادی کال د افغانستان د تاریخ په زرینو پاڼو کی لو رمقام لری ځکه چی هم دا کال ؤ چی پخوانی د آریانا او بیا د خراسان هیواد د افغانستان په نوم د اسیا د لوی و چی په زړه کی راڅرګند شو . درانی احمد شاه لوی افغانستان تقریباً د آریانا په حدود کی منځ ته راوست ولی د هغه له مسیانو په خپلو منځو کی د قبیلوی جګړو په ذریعه پخوانی افغانستان ضعیف کړاو د افغانستان په دننه کی ئی د استعمارچیانو د پاره د لاسوهنی زمینه

برابره کړه. پەلوسړیو خت کی بارکزیو رونهد درانی پاچاهانو پوره‌همکارکنهل کیدل خو په ۱۸۱۸ م کال کی دفتح خان په وژلوسره دغه همکاری وشلیده او ددوی ترمنځ د تاج او تخت‌او انتقام اخستلو مبارزه پیل‌شوه پەدی‌توگەقبیلوی پراگندگی د درانیانو دامپراتوری بنسټ‌پەلرزه راوست‌بیادغـه امپراتوری دبارکزوو رونهو د مخالفتونو په اساس په‌کوچنیو بـرخو وویشل‌شوه او دافغانستان سیاسی وحدت پەټولەمعنـی متضرر شو.

رنجیت سنگ‌چی‌په ۱۷۹۸ م کال کی دشاه‌زمان لەخـوا دپنجاب حاکم‌مقرر کړشوی ؤ او س‌ئی‌دسکانو خانگړی حکومت‌درلودـ او د افغانی سیمو پەلاندی‌کولو ئی لاس‌پوری کړ. په۱۸۱۹ م کال کی‌ئی کشمیر دافغانستان څخه‌جلا کړ (*) همدارنگه سکانو تر ۱۸۲۱ م کال داباسیندد‌لمر خاته خواته ټولی افغانی‌سیمی دافغانستان څخه‌یو پربل پسی ونیولی. (۲۹)

دبارکزوو رونهو ترمنځ هم‌مبارزه‌سخته‌شوه او هریو دکابل نیولو دپاره خپلی هڅی‌زیاتی کړی خو دوست‌محمد خان ترټولو رادمخه‌شولو او په ۱۸۲۶ م کال یی په کابل کی‌دچارو واگی پەلاس‌و اخیستی دوست‌محمدخان پەمخکی‌ډیر جنجالونه‌پراته وؤ.

---

(*) دکشمیر سیمه په ۱۷۵۲ م کال کی دا حمدشاه درانی‌په واسطه‌فتح‌شوی وه.

(۲۹) ظفرکاکاخیل، پښتانه دتاریخ پەرناکی، پیښور، ۱۹۶۵، ۹۵۳ - ۹۵۴ - مخونه.

سدوزی کامران په هرات کی حکومت درلود. کندهار دبارکزو کندهاری و رونو کندل‌خان ـ شیر دل خان ـ رحم‌دل خان او پردل خان په‌لاس کی و او پیښور کی سلطان محمدخان حکومت کاوه. (۳۰)

نه‌یوازی دسک‌دولت دبرتانوی استعمارچیانو په‌تحریك د افغانستان‌څخه دسیمو په‌شکولو پیل کړی وؤ بلکی‌ایرانیانو هم د تزار په‌تشویق‌د هرات دجلاکولو هڅی درلودی لکه چی په ۱۸۳۲ م کال کی‌ئی‌د شهزاده عباس‌میرزا ترقوماندی‌لاندی په هرات حمله‌وکړه.دی‌حملی انگلیسانو سره هم ویره پیداکړه‌چی که‌چیری ایرانیان (دهغه‌وخت‌فارسیان) هرات ونیسی نو په هند باندی‌به‌یی‌روسانو حمله یقینی شی.نو په همدی لحاظ‌په‌۱۸۳۳ م کال کی‌شاه‌شجاع‌د‌انگلیسانو په‌کومک داجیرو پوځونو په ملکرتیاپه کندهار حمله وکړه او داسی‌ئی‌پتیلی‌وه چی‌د کندهار تر نیولو وروسته‌د کابل په لوپرمخ ولاړشی.ولی دوست‌محمدخان کندهاری ورونو ته‌په‌وخت مرسته‌ورسوله‌او دشاه‌شجاع اجیر پوځونو د ۱۸۳۳م کال دجون‌په میاشت کی‌ماتی‌وکړه او کیمبل‌انگلیسی

---

(۳۰) نقتولاخالفین،انگلستان دافغانستان پرضدد‌تاریخ پاڼی، ۱۸ ـ ۱۹ مخونه. چ

افسر دشاه شجاع د پوځ قوماندان هم سخت ټپي شو او ددوست محمد خان
له خوا ونیول شو . (۳۱)

په داسي حال کې چې داستعمار چیانو دسیسې په سیمه کښي ناامني خپره شوه او د افغانستان په کور نیو چارو کې په شدت روانې وې ، برسیره پر دې
چې شاه شجاع او دفارس دولت پر کندهار او هرات حملې و کړې
سکانو هم د ۱۸۳۴ م کال د مي د میاشتي په شپږمه نیټه پیښور او د هغو
ټولې سیمې و نیولې . دوست محمد خان دد غو افغاني سیمو دراګر
ځولو دپاره په ۱۸۳۵ م کال کې دامیر المؤمنین لقب و مانه . (۳۲)
امیر ډیر ز ر دغزا په نوم د پیښور دراګرځولو دپاره پوځ .
راغونډ کړل او د ۱۸۳۶ م کال دفرورۍ په میاشت کې جلال
اباد ته روان شو . خو دامیر ارزو تر سره نشوه ځکه چې دا کتر
هارلان د رنجیت سنګه نماینده وکړی شو ل چې دامیر دوست محمد خان
او سردار سلطان محمد خان تر منځ نفاق اچولو په ذریعه کامیابي تر
لاسه کړي . (۳۳)

د ۱۸۳۷ م کال په پسر لي کې بیا هم امیر خپل زوی اکبر خان د
پیښور دراګرځولو دپاره هغه خوا ته ولیږه او جمرود ته نږدې ئې

---

(۳۱) اولس یار ، انګریزي استعمار او افغانستان ، ۷۳ مخ
(۳۲) دملیسون ، دافغانستان تاریخ ، لاهور ، ۱۹۳۰ ، ۳۴۳ مخ .
(۳۳) په نوولسمه پیړۍ کې افغانستان ، ۱۳۱ مخ

سکانو تەسختەماتیورکړه او دسکانو ستر جنرال هرسنګ وو ژل
شومګردا فغانانو دغەفتح دامیر پەذریعه تعقیب نشوه.(۳۴)
دپینبو رراګرځول دامیرستره ارزووه چی‌د همدی هدف ترسره
کولو دپاره امیر دبرتانوی هندګورنرجنرال تەپەوارواردغه
ارزو دلیکو نو پەذریعەښکاره کړی‌وه همدارنګه امیر رنجیت
سنګ تەهم‌لیکلی‌ؤ چی کەچیری پینبو را و نو ری افغانی‌سیمی‌او
ولایتو نەپری‌نږدی‌ـافغانان‌بە دوسلی‌پەزور خپلی افغانی‌سیمی
بیرته و نیسی . (۳۵)
دبرتانوی هندد‌نمایندګانو دامیر تنا ـ تەمثبت‌ځواب‌ؤ رنه کړ
یوازی یو تـ.بار نی ډیئت‌دبرنس‌پەمشری کابل‌ته راغ استول‌شو .
انګلیسانو لەیوی‌خوا دسکانو سره د دوستی‌تړون‌درلو داوسکانو
د دوی پەسرسته‌او تشویق‌دپیښو رافغانی‌سیمی‌لاندی‌کړی‌ؤی
لەبلی‌خوا انګلیسانو دسکانو ګته خپله‌ګټه بلله‌ځکه‌چی برتانوی
استعمار چیانو دراتلو نکی‌دپاره‌پراخ تجاوزی‌پلانو نەدرلو دل
او دهندختیځ شرکت‌وزخ پەورځ پەیوه‌استعماری سیاسی‌شرکت
بدلیده‌او تول شمالی‌هند دبنګال‌نه رانیولی‌ترستلج دریاب‌پوری

---

(۳۴)،اریانامجله ۳ـ۴ګڼه ، دافغانستان دعلوموو
اکادمی،۱۳۶۲کال ، ۵۸ مخ
(۳۵)،پەنولسمه پیړی‌کی افغانستان ،۱۰۷ مخ .

دبرتانیي دامپراتورۍ په استعمارۍ کړیو کې ښکیل شو .

د برنس هیئت د ۱۸۳۷م کال دسپټمبر دمیاشتې په ۲۰ نیټه کابل ته راورسیداو دامیر او برنس ترمنځ خبرې پیل شوې .

دکندهار بارکزیو رونو دامیر دوست محمدخان نه دویرې له امله دتزارۍ روسیې سره خپل تماس دفارس په ذریعه ټینګ کړاو کپتان ویتکیویچ کندهار ته راغی او لې هغه ژر بوه شو چې دافغانستان تول سیاسي اهمیت په کابل کې دی. نو دستي ئې د لومړي نیکلای خخه دامیر دوست محمدخان په نوم یو لیک راو غوښت او د ۱۸۳۷ م کال دنومبر په اخیرو ورځو کې کابل ته راغی. برنس هم لاتراوسه په کابل کې ؤ (*) .

امیر دواړو نمایندګانو سره خبرې کولې خو دامیر ستره اړزو هماغه د پېښور بیرته راګرځول ؤ . برنس وار په وار دامیر په طرفدارۍ په هند کې دبرتانوي نمایندګانو خخه د لیکونو په ذریعه دامیر دی تقاضا ته د مثبت ځواب ورکولو هیله کړې وه. مګر دلارډ اکلیند د ۱۸۳۸ م کال دفرورۍ د میاشتې ۲۰ نیټې ځواب د دوست محمدخان ټولو مطالباتو او تضتقاضاو ته رد ځواب ورایه. (۳۶).

---

(*) برنس د ۱۸۳۸م کال دجنورۍ په ۱۵ نیټه دتزار نمایندهٔ ویتکیویچ خبر برتانوي هند ته دیو لیک په ذریعه ورکړ .

(۳۶) قاضي عطأو الله خان، دپښتنو تاریخ ، پېښور، ۱۹۳۷ دویم جلد ، ۲۷۳ مخ .

د تاریخ په دې حساسو شیبو کې ـ استعماري قدرتونو د خپلو خمکو د پراخولو او دنورو استعمارولو د پاره په چټکتیاسره د وروسته پاتې او کوچنیو هیوادو په دننه کې لاس وهنه کوله او هغوی به ئې دیو ه بل په ضد تحریکول. په دې لړ کې ایرانیانو هم د ۱۸۳۷ م کال دنومبر په میاشت کې په هرات یرغل وکړاو دډیسمبر د میاشتې په لومړۍ نیټه د هرات محاصره پیل شوه. د کامران په لښکر کې انګلیسي افسر ایلډرډ پاتنجر هم خدمت کاوه ـ محاصره یو کال او څلور میاشتې اوږده شوه، په نتیجه کې د ۱۸۳۸ ـ م کال دسپتمبر په میاشت کې ایرانیانو ماتې وخوړه. (۳۷)

کله چې دبرنس دسوداګرۍ تش په نوم هیئت دامیر سره مو افقې ته ونه رسید ـ دا پریل دمیاشتې په ۲۹ نیټه د کابل نه دپیښور په نیت روان شو او دلارې څخه ئې په سمله کې دبرتانوي هندګورنر جنرال لارډاکلنډته خپل راپور وړاندې کړاو دې ئې ددې څخه پوره خبر کړچې دامیراو تزار نماینده و یتکیویچ تر منځ په صمیمي فضا کې خبرې روانې دي (۳۸). کله چې په هند کې برتانوي نما ـ

---

(۳۷) دمیلسون، دافغانستان تاریخ، ۳۳۲ مخ.
(۳۸) Arthur Swinson, North West Frontier, London 1967, P 38.

يند ګان د دغو جر يانانو څخه خبر شول د دوی عصبانيت لا

پسې زيات شو . په همدې نظر په کلکته، سمله او پنجاب کې نوی

ليدني کتني او مشو رې پيل شوې چې په نتيجه کې د انګليسي مقاماتو

نتيجه ګيري او فيصله دا شوه چې : د تزاري روس هيئت تګ کابل

ته د انګليسانو په ګټه نه دی ـ نو بايد په دې بهانه د بارکزو سردارانو

سره خپل علايق و شکول شي او د برتانوي هند پولو او سرحد ونو

څخه مستقيماً د افغانستان په خاوره باندې تجاوز و شي او د خيبر ـ

کرم او بولان در و له لارې دې انګليسي قواوې راساً په افغانستان

باندې په تيرې لاس پورې کړي او د بارکزو سردارانو زمامد

ارې ته دې خاتمه ور کړ شي. سدوزي شاه شجاع چې د انګليسانو

په لاس کې دی د هغه پر ځای دې د افغانستان پر تخت کښېنول شي. په

افغانستان کې دې بر تانوي پوځونه او سياسي مامورين په دايمي

توګه پاتې شي او د نړۍ د غه سيمه دې د انګليس د نظامي او سياسي کنټر

ول لاندې راوستل شي. (۳۹)

---

(۳۹) اريانا مجله، کابل، ۱۳۶۲، ۳ ـ ۳ ګڼه، ۱۶۱ ـ ۱۶۲ مخونه.

## ب : په نولسمه پېړۍ کې د افغانستان اقتصادي وضعې ته لنډه کتنه :

په نولسمه پېړۍ کې افغانستان یوه فیوډالي، نیمه فیوډالي او ماقبل فیوډالي ټولنه وه او په اقتصادي لحاظ یوه وروسته پاتې هیواد بلل کیده. د ۸۰ فیصدو څخه زیات نفوس په کرهنه او مالدارۍ مشغول وو (۳۰).

د ځمکو زیاته برخه په لویو ـ منځنیو او کوچنیو ملاکینو پورې تړلې وه. په افغانستان کې حاکمه طبقه هم د ملاک طبقه وه او لې د ټولنې اصلي تولیدونکې د بزگرو طبقه گڼل کیده. بزگرو په ځمکه کې د سختو استثمار ی شرایطو لاندې ژوند کاوه. نو په دې توگه بزگر په ټوله معنی د ملاکې مالکیت پر اساس په بیرحمانه شکل استثماریدل.

---

(۳۰) ام ـ کې پیکولین، تصویر اقتصادي وسیاسي افغانستان، تاشکند، ۱۹۵۶، اقتصادي برخه، ترجمه فرهنگ ص ـ ۲

په افغانستان کی دځمکی مالکیت ډو لو نه دهیو اد په اقتصادی ، سیاسی او اجتماعی ژوند کی ډیر تاثیر درلود اوعمو ماً د مالکیت ډو لو نه په نو لسمه او څنی تر شلمی پیړۍ تر لو مړ یو لسیز و و رې په لاندی تو گه مو جو د و و :

۱ - ملا کی مالکیت ۲ - بز گر ی مالکیت ۳ - ر و حانی مالکیت ۴ - دو لتی مالکیت . (۱۴)

په نو لسمه پیړی په افغانستان کی د مالیا تو ټا کل او ټو لو ل ا کثراً دا تلسمی پیړۍ د در انیانو دحا کمیت دو ری ادامه او شکل در لو د درانیانو هم دټا کلو - تناسبا تو په تر ا ر دمځکی مالیات ټو لـو ل چی د مځکی دما هیت له مخی ئی سر ه تو پیر درلو د . او بیلا بیلو و لا یتو نو کی مختلف و ؤ . د ر انیانو چی د کند هار دمځکو ډ یر ی بر خی ئی دولت ته دعسکری خدمت په مقابل کی په خپل لاس کی نیو لی و ې مالیات نه و ر کو ل . غلز یو یو از ی په لږه اندازه ما لیات و ر کو ل تاجکانو تر هغه ز یات مالیات تادیه کو ل ، د کشمیر و لا یت عو ایدتر ټو لو نو ر و و لا یتو نو څخه ډ یر و و - چی څلو ر نیم یو ر و پیو ته رسیدل . (۲۴)

---

(۱۴) تصویری اقتصادی وسیا سی افغانستان، ص ۳ .

(۲۴) اریانا مجله ، ۱۳۶۰ ، در یمه گڼه ۶۹ مخ .

د دُرانیانو په دوره کې په خوږو نه‌سالیه درجه‌بندي شوې وه

چې له هغه جملې قلنګ تر ټولو لوړه‌سالیه‌وه . دغه‌سالیې د یوې‌سیمې

نه‌تر بلې‌سیمې پورې توپیر درلود، د مثال په توګه د [illegible] په سیمه

باندې د کال اتلس زره روپۍ تیا کل شوې وې چې له هغه جملې نه

۱۲ زره روپۍ د قلنګ په نامه او شپږ زره روپۍ د سورسات (د لښکر خرڅ

او اذوقه) په نامه [illegible] لي.(۳۳) د سرو تو په سیمه باندې هر کال

۳۲۰۰ او شپاړس [illegible] لي په بدل کې تیا کل شوې وو . په هندوستان باندې

د یرغل په وخت [illegible] ۳۲۰۰ او شپاړو پر ځای ۳۲۰۰ سواره [illegible]

پاره‌یې له تنخوا چې د شاهي لښکر و سره به‌ئې یو ځای [illegible] کاوه

تیا کل شوې وه. د شاه زمان په وخت کې دغه‌مالیه‌بیا په روپو باندې

واړول شوه.(۳۴) .

د رانیانو د هندوانو نه د جزیې په نامه هم مالیه اخستله چې

په جنجو (غاړکي) باندې دوه‌یا له‌دوه‌نه زیاتې روپۍ اخستل کیدې.

(۳۵) .

د درانیانو په وخت کې ګنګ یا دو دونو نکاح روپۍ هم اخستل

شوې دي چې هندوانو به ۲۱ روپۍ او مسلمانانو به ۶ - روپۍ

ورکولې. دغو ایدو بل شکل د/در / په نامه موجود و چې هر کال

---

(۳۳) حیات افغانی ۶۹۶، ۷۶۹ مخ .

(۳۴) پورتني اثر ۸۷۵، ۸۷۶ مخونه .

(۳۵) پورتني اثر ۷۶۶ مخ .

به دشیانو د پیرو ولو په بدل کی له غرخو ونکی شخه د اسوج (*)

په میاشت کی یو ه پیسه چی تقریباً یو غرانالد ز ه اخستل کیده .

عشر یالسمه د کر نی محکولو بل دول عاید و وچی په خینو

سیمو کی موجو دو وچی د کر نی محکو د پید اوا رو نه په لسمه

ا خستل کیدله . ( ۳۶ ) په زیاتوسوار دو کی د رو پیوا و ما لیی ،

تو لو ل دملکانو په ذمه وو چی دتیا کلی مالیی نه ز یا تی پیسی

هم اخستل کیدی چی ملکانو به خپل منخ کی سره ویشلی -

و لی تیا کلی انداره به تیکه دا ر ته تسلیمیده . ( ۳۷ ) .

د مالیی په پو ر تنیو شکلو نو بر سیر ه هغه باند ینی مسلمانان

چی غو ښتل ئی چی د کندهار په سیمه کی د شپنو یا بزگر انو

په تو گه میشته شی ددو لت د حفاظت په مقابل کی دخانه دود ی

یاخانه و اری د محصو ل په و ر کولو مجبو ر وو چی په هره

کو رنی به ئی یوه رو پی و رکو له د رانیان له دی محصو ل

نه معاف وو . په کسبگر و باندی کلنی محصو ل له دو و څخه

تر او و رو پیو پو ری حو اله شوی وو ( ۳۸ ) دمحما ز یو په

---

(*) . د هندو انو د کال او مه میاشت .

( ۳۶ ) مجله اریانا ، ۱۳۶۰ ، دریمه گڼه ، ۱۰۰ مخ .

( ۳۷ ) حیات افغانی ۷۳۳ - ۷۳۴ مخونه .

( ۳۸ ) اریانا مجله دریمه گڼه ، ۱۳۶۲ کال

۱۱۳ - ۱۱۵ مخو نه .

دو ره کی د افغانستان شتمن ولایتونه دداخلی مخالفتونو پر اساس او همدارنګه د استعماری هموادو د دسیسه کولو په واسطه دافغانستان څخه بیل شول . په خپله افغانستان هم په سیاسی لحاظ په وړو واحدونو وویشل شو. حاکمانو دخپل دریځ د ټینګولو دپاره کو ښښونه وکړ چی هوایه ډیر ګړی. خو بیاهم د مالیاتو ناوړ ا برشکل د پخوا په شان په ځای پاتی شو.

د محمد زیو دحاکمیت په وخت کی مالیات عموماً د او بوله قراره چی ځمکی پری خړو بیدلی یادهغو ځایونود اوسید ونکو له مخی را تولیده - مالیات چی په دی وخت - کی د هوایه وستره منبع وه عموماً دجنس . نقدی او پروړو په شکل راټولیده . دکندهار درانیانو بیاهم دپخوا په شان د- امیر عبدالرحمن تروخته پوری یوازی په نامه لږ مالیات ورکول - دامیر شیرعلیخان په دوره کی دهیواد عمومی عوایدزیات شول او په مالیاتی سیستم کی اصلاحات منځ ته راغلل او په ځمکه باندی مالیات ډیر شول چی دغه مالیات د دجمع بست او کوټه په سیستم راټول شوی دی. دجمع بست یا جمع بندی د مالیاتو هغه ټاکلی مقدارؤ چی په یوی سیمی یادمځکی په یوه خاص ډول باندی حواله شوی ؤ په لوسړی وخت کی په جنس ټولیدل - خو په لیرو او ناراسو

سیمو کی په ډیرو حالاتو کی د هغو د تحصیل مشکلات ددی۔ سبب شول چی د جنس په ځای یوه تاکلی اندازه نقدی روپی واخلی دغه روپیو اندازه له یوی سیمی نه تر بلی سیمی پوری توپیر درلود ۔ خو اندازه ئی هر چیری حتی له عشریا لسمی نه هم کمه وه .

د کوټ سیستم له مخی به حکومت د مځکی د عمو می حاصلا تو یوه ټاکلی برخه اخستله ۔ سه کوټ یاد حاصلا تو دریمه برخه عمومیت درلو د خو چار کوټ پنځ کوټ او حتی شش کوټ هم جاری ؤ . په عمومی توګه د کوټ سیستم په هغه سیمو کی جاری ؤ چی حکومت هلته پوره تسلط درلود د محمد زیو په دوره کی هم ددر انیانو دوخت ملاکی ما لکیت بزګری ما لکیت ۔ روحا نی مالکیت اوددولتی مالکیت د ځمکی دما لکیت عمده شکلو نه وو .

ددولتی یاسر کاری ځمکو برخه د افغانستان په ټو لو سیمو کی یو شان نه وه د جلال آباد په سیمه کی دد ولتی ځمکو حاصلا تو نه دوه دریمه یا نیمائی اخستله . په غزنی کی ددولتی ځمکو له نیمائی تر لاسه کوله. په کندهار کی بیاددولتی یاسر کاری ځمکو نه د دولت برخه دری کوټ یا څلو ر کوټ معمول ؤ . ( ۹م ) .

---

( ۹م ) آ ریا نا مجله ، ۱۳۶۰
دریمه ګنه ، ۹۷ – ۱۰۹ مخونه .

دمالکیت دو ډولونه او ویش په افغانستان کې مختلفه بڼه درلوده چې
په اکثرو ځایو کې چې د یو قوم حاکمیت او قدرت د فتوحاتو په وخت
کې ټینګ شوی دی په همدې شان ټول قوم ټوله
نیول شوې سیمه د هر ښاخ او کور نیو د شمیر په اساس په
برخو او حیصو باندې ویشلې ، ګټه او تاوان هم په همدې توګه تقسیم او بیا د
کلیو په دننه کې په کوچنی برخو د خپلو تر منځ د هرچا برخه ټاکل شوې
ده دغه مالکیت د اصلي مالکیت په توګه کورنی ته په میراث رسیدلی دی.

دوهم ډول یې د غصب له لارې مالکیت هغه وخت ترلاسه
کیده چې خپل غنیم به ئې وو وژه او د هغه املاک به ئې ونیول.

دریم د اصلی مالکانو نه دبیې په ذریعه اخستل .

څلورم - د بنګی یعنی د خونبها د سولی یا د ښځو د شرم
په بدل کی مدعیانو ته ترلاسه کول .

پنځم - د مالې د ورکولو په بدل کې ، ځینو د ځمکې
مالکیت ترلاسه کاوه . ( ٥٠ ) .

ځمکې عموماً په دری ډوله درجه بندی شوی وی . ښې -
ځمکې - متوسطې ځمکې - دریمه درجه یا ناقصې ځمکې -
ولی د کرهنې دوه ډوله ځمکې مشهورې وی . لومړی آبی
یا نندوبه ځمکې دویم للمی یا وچوبه ځمکې .

---

( ٥٠ ) حیات افغانی ، ٧٨٢ - مخ .

دابی ځمکو ښځه په گرمو سیمو کی قسماً دوه فصله ـ او ـ دلامی ځمکو ښځه عموماً یو فصل اخستل کیده د افغانستان ـ ځـه په‌سړو او ښه په گرمو سیمو کی دغه لاندی زراعتی پیداوار عمده حاصلات وو: .

غنم، وریجی جوار، اوربشی، مې ـ تمباکو، پـنبه، ختکی، هندوانی، انگور، شفتالو، انار، مندتی، سنی گنی، خرما، نیشکر، انځر، چوتا، نارنـج، سنتره، چکوتره، کیله، لیمو، ام، چارمغز، ناک، توت، لبلبو، تیلی نباتات، پیاز، هوږه، بادنجان، پتاتی، میټ، چغی، مشـنـگ کورکمن، ستر، بادرنگ، کدو، تري، زردکی، شوتله، رـشقه، جنگلات اونور. (٥١).

**داو بووېش:** او بەپه مختلفو ډولو وېش کېدی‌او افغانستان هري سیمی تقریباً ځانته ډول درلود دولی دکلیواو اوقومونو ترمنځ دخپلو شریکو ویالو اوبه اکثراً په دوه ډوله وېشل کیدلی:

لومړی وار: په‌دغه ډول وېش کی اوبه په خپلو منځو کی دضرورت له مخی په ساعتونو یاپه شپه اوورځ باندی سره وېشل کېدلی‌او هر سړی به په‌خپل تاکلی وخت خپلی ځمکی خړوبولی.

---

( ٥١ ) حیات الغانی، م٧٥، ٧٥٩ مخونه .

دویم : په مشترکه و یاله کی یوالرگی چه د اولس
پهژیه ستهه یا گرگه بلل کیده دبرابری په منظور د و یالی
په خوله کی ایښوول کیدهاو په هغه سټی باندې په برابرو
برخو کی سویږے تکو هل شوي ـ او په هغه کی خولی
پر یښودل شوي وي او د خپلی خولی نه هر کلی ته همیشه
او به تللی دکلی په دننه کی بیا او به دغږو په شمیرپوری
اړه درلوده او دهر پـټی داو بو اندازه معلومهوه او پهزیاتـره
سیـموکـی مـا لیههم دخولی پراساس تولیده

## بزگري برخه : دبزگربرخه پهمختلفو ډولووههرډول

غلی او پنبی نه عمو مـاًیو پر ۳ برخه بزگر او ۲ پر ۳ برخی

مالک اخستلی تخم او مالیه د ځمکی په خښتن پـوري اړه
درلوده خو په ځینوځا یونوکی لوسري تول پید اوار پـه
لسو یاا و وبرخو ویشل کیدلچی دغه کارمالیي دتاد یه کو
لـودپـاره ترسره کیده .

په ځینو سیمو کی بیا ځلورمه برخه هممعمولهوه .کله
بـه بیا لسمه یا اوومه پر یـشول کــیدي نـورزراعتی
پیدا وار به بیاپه پنځوبرخو ویشل کیدل چی لهدغه ویش
نه دري برخي مالک او دوه برخي بزگر اخسـتلی ـ خـوپه ـ
دغه حال کی هم یوولسمه برخه دگانی او کرائی له
مدرکه مالک اخستله .

په ځينو ځا يو نو کې ډ ريم اخستل کيده چې په دې صو رت کې بيا بزګر د تخم او نو رو مصارفو خلا ص ؤ ـ خو بيا هم ديادو لو و ړ ده چې د محصو لاتو و يش د يو کلي نه او بل کلي ته تو پير درلود د ځمکي ښه و الـی او خـرابـو الي هم د بزګر په بر خه کی تاثير درلو د . ( ۵۲ ) .

د بـزګـر پـه بـر خه کې څه شـی چـی د تـو جه وړ دي هغه دا چـی پـه دي تـولو ډو لو نو کې چې پورته ذکرشول ځمکني مناتبات په استثماری پايه و لاړ ؤ او په ټولو ډ و لو نـو کـی بـز ګر په پير حمانه شکل استثمار يده .

**ما لدا ر ی :** په افغانستان کې ما لداری د کر هنی تر څنګ له ډير پخوا څخه معموله وه او دافغانستان په ټو لو سيمو کې ما لد ـ اران موجو د و و ـ و لی تر ټو لو د کو چی مالدارانو بر خه زياته وه ـ چې په اوړي کې دافغانستا ن په مر کز ي لو ړ و سطحو او په ژمی کي بيا آان تر سيند دريا ب پو ري په حر کت کی و و .( ۵۳ ).

په افغانستان کې ميږي عموماً د نسل د ز ياتوالي دپا ره اوپسو نه د غو ښو دپاره په بازارو نو کی پلو ر ل کيد ل .دو ريو او پوست څخه هم ګټه تر لا سه کيده . د وزو رمی

( ۵۲ ) حيات افغاني ، ۷۶۳ - ۷۶۷ مخو نه

( ۵۳ ) ام ، کی ، ـپيکو لين ، تصو ير اقتصادي او سيـاسی افغانستان ، فصل پنجم قسمت اقتصادي ، ص ۱۰۱ .

هم د پسو نو ترخنګه مخصوصاً په لوړو سیمو کې ز یاتره معمو لي وي.
غو اوي او غو ایي ، اسان، او ښان، ، خره، میښې کچرې په زیاته پیمانه
روزل کیدل مخصوصاً د کوچیانوو نه د مالداري په برخه کې
ښکاره وه.

په افغانستان کې د مالداري عمده محصولات وړي، پو ستکي، غوړي
غو ښې، شدې، پنیر ، کرت او د هغوي نو ر محصو لات وو
(۵۳).

**صنایع:** په نو لسمه پیړۍ په افغانستان کې صنایع په کلیوالي
خانګي ډول معمول و و چې د طبیعي اقتصاد ضر و ري سامان ئې تیاره
وه او د کلیو یو ز یات تعداد او سیدو نکي په خانګي صایعو بو خت
و و. قالین بافي ، تغر ، لمڅې ، شړۍ، کمبلې ، چپنې ، جو الو نه
او نو ر په نو لسمه پیړۍ کې د افغانستان مهم صناعتي ر و ستائي
صنایع بلل کید ل.

**کا نو نه:** او سپنه ( په محلي بټه ) ، سر سرې ډبرې، مالګه،
کر یمه احجار او نو ر چې په محلي تو ګه تري ګټه کیده.

**صا د ر ات:** وړې ، قر ه قل ، پسو ستکې، ز یړ غو ړي
او نو ر حیو اني محصو لات ،لر ګي او نو ر.

**و ا ر د ات:** مر غلنې دانې ، قر طاسیه باب ، د دیګه مساله ، ـ
مالګه ، نیل ـ تیل، کو ر کمن ، شکره، چیني باب او نو ر.

---

۵۳ حیات ا فغـا ني ۳۹۵ مخ.

دو ارداتو زیاتره‌برخه سپهسین تو کران ، و ریښمین تو کران
و رین تو کران‌هنری شیان ،بنجري سامان، ادو یه، رنګارنګ
جنګی و سلی او نورچی عموماً دهند څخه وارد یدل . (٥٥)

افغانی سوداګران به دسوداګری په منظورلری‌لري ملکونو
ته تلل‌ زمونږ تجارت‌په دي وخت کی عموماً د هندوستان، ـ
روس، ایران (دهغه وخت فارس) ترکستان ، چین ، تبت ـ
اونورو ملکونوسره کیده د سوداګري په برخه کی د
پوونده‌سوداګرو یعنی کوچیانو او نیمه‌کوچیانو ونډه د یادونو
وړده چی دګرمی په‌موسم کی لویدیځ افغانستان ، ترکستان
خراسان او دژمی په موسم کی ختیځ افغانستان
آن‌تر هندوستان پوري په سوداګري بوخت و. په دي‌توګه د
هیواد په دننه‌مهمو مرکزونو کی‌داقتصادي پیوندونو په‌لړ کی
دفیوډالی اقتصاد ترڅنګ سرمایه داري مناسبات هم په‌کرار ـ
کرار په ښارونو کی دفیوډالی اقتصاد په بطن کی پراختیا ـ
پیدا کړه او دهیواد په داخل کی سترستر بازارونه لکه هرات
، کندهار، کابل ـ غزنی ، جلال‌آباد منځ‌ته راغلل چی عموماً
دافغانی سوداګرو دپاره برسیره پر پورته دا خلی بازارو
د افغانستان‌په ګاونډ کی هم لوي‌لوي بازارونه لکه بخارا
دفارس څني ښارونه ، امرتسر ،ډهلی ، بنارس کلکته ، بمبئی
،ملتان ،لاهور، کراچی، راولپندي اونورعمده مرکزونه‌بلل کیدل .

---

(٥٥)حیات‌افغانی ، ٣٢ او ٦١ مخونه

په دي وخت کی عموماً د مالونو ورلواو راوړلو ـ
د پاره دا وښانو ، اسانو کـچرو ا وتتوګانو څـخه ـ
استفا ده کیده . .

دافغانستان موقعیت دستر ولارو په برخه کی برجسته ـ
ؤ . د و ر یښمو مشهو ره لاره دا فغانستان د خاوری څخه تیر ـ
یده . په محلی توګه ګـومل دري لاره ، دکو رمی د ری لاره
دبولان دري لاره او نوري د افغانستان د سو دا ګرو د پا ره
مهمی لا ری ګنل کیدی .(٥٦)

---

٥٦ ) ، حیات فغانی ، ٥٦ ـ ٦٠ مخونه. ج

# دریم فصل

## الف: د افغان او سک دولتونو کشمکش.

کله چې شاه زمان په ۱۷۹۳ - ۱۷۹۹ م کلونو کې هند-
ته د هغه ځاي محلي فیوډالي حکومتونو له خو ادبرتا
نوی استعمارچیانو د ټکولو او ړیښو ایستلو د پاره دعوت
شو، دي په دي پوه وچې په ډهلي باندي بریالی یرغل
تر هغه وخت پوري نه شي کیداي ترڅو د سکانو
غوښتني و نه مني، سکانو هیله درلوده چې په پنجاب کې -
د افغاني حاکم پر ځاي یوسک حاکم مقرر شي. د همدي غو-
ښتني پر اساس مهاراجه رنجیت سنګ په ۱۷۹۸ م کال کې د
پنجاب حاکم شو. رنجیت سنګ (۱۷۸۰ - ۱۸۳۹ م) ته مناسب شرایط
برابر شول هغه داچې له یوي خو افغانان په خپلو کې دنفاقو له وجه
کمزوري شول، د بلي خو ابرتانوي استعمارچیان د سرحدتیانو سره په جګړه

کی وو رنجیت سنگ ژر وکړ ای شول چی لو سړې دافغانانو ـ
څخه خپلوا کی واخلی او بیا دهند په‌شمال کی یو مستحکم
سلطنت تشکیل کړي ، دغه نوي سلطنت‌چی د ستلج د ریا ب ـ
په شما لغربی برخوکی سنځ تـه ر ا غـی
په کمو خت کی‌ئی زیات‌بر یالیتوبونه‌په‌نصیب‌شو ل‌او دخپلوحدودو
لـمن ئـی تـر جمنادر یـاب‌پوري پر اخه کړه . ( ٥٧ ) .
کوم وخت چی شاه شجاع په ۱۸۰۹ م کال دکو ر نیو ـ
قبیـلوی‌شخړو پـه جـر یـان کـی مـغلـوب شـو ،
دهمـدي کـال دجنوري دسیـاشـتـی په ۳ نیټه ئی دپنجاب
راجارنجیت‌سنگ‌سره‌و لیدل‌او درا جا څخه‌یی کومک‌و غو ښت
،خو راجا ددي په عوض چی دشاه‌شجاع سره‌ئی بیاد تا ج‌او تخت
په نیولو کی کومک کړي وي ، دکوه نو ر مشهو ر الماس
ئی‌هم دشاه‌شجاع څخه په زو ر و اخیست لـه دي و رو ستـه
ر نجـیت سنگ د دي قیمتی زیو ر خـاو ند شو ( ٥٨ ) دافغا ـ
نستان په ختیځ پلو کی دپنجاب سیکان همیشه د.بر تانوي ـ
استعمارگر حکومت په ذریعه تشو یقیدل تر څو دخپلی‌خاو ر
ي‌پـر اختیا دافغانسـتان په قلمر و کی و غو اړي ا و په‌تد ر یجی
توگه دافغـانستـا ن‌ختیځ و لایتو نه دافغانستان څخه‌جلا کړي
چی‌دهمـد غه تشو یق په نتیجه کی په ۱۸۱۸ م کال رنجـیت

---

( ٥٧ ) افغانستان و هند بر تانوي ، ص ۳۸.

( ٥٨ ) حیات افغانی ، ۱۲۲ ـ ۱۲۳ مخونه

سنگ لومړي پر اټک او بیاد ملتان پر ایالت باندي یرغل وکړ

افغاني حاکم مظفرخان او افغاني پوځ چې شمیر یې دوو ــ

زرو تــنو ته رسیده. په ډیره زړو رتیاسره تر هغه پورې وجنگیدل

ترڅو وژل شول ـ ملتان د سکانو په لاس کې پریوت. په دي توگه

ملتان او پنجاب دو اړه د افغانانو له لاسه ووتل. سر بیره پر دې د سکانو د

پاره د افغانی نو روو لاینو لکه کشمیر پیښو ر او ډیره جاتو د جلا

کید و زمینه هم برابره شوه. (۵۹) څــه وخت وروستــه

د همدي کال په وروستیوو ختوکې رنجیت سنگ د اټك په لو

یدیځو افغانی سیمو باندي یرغل وکړ د خیراباد او جهانگیره کلاگانی یې

ونیو لې دنو اسپر د میاشتی په شلمه نیټه پیښو رته را ورسید مــ دا

چې یار محمد خان د پیښو ر حاکم د رنجیت سنگ د مقابلې توان په ځان کې

نه لیده د خیر اباد خواته ولاړ بیا ګر ډیر ژر پیښو ر بیا د یار محمد خان

له خوا ونیول شو. (۶۰)

څنگه چې له یوې خوا بارکزي وروڼه په خپلو کې سره اخته وو

د بلې خوا سدوزي شاه شجاع هم د تاج او تخت دبیر ته لاس ته را

وړلو په خاطر د انگلیسانو لمن نیولې وه ــ انگلیسانو هم د غه سردار

د ۱۸۱۶ م کال راهیسې په لود یانه کې د ساتلو ر ځې په خاطر

ساتنه.

---

(۵۹) په نولسمه پیړۍ کې افغانستان، ۶۲ مخ.

(۶۰) حیات افغانی، ۱۳۳ مخ.

ر نجیت سنګ د افغانستان د دغه ګډو ډیواو انارشیز منه په استفادي کړاو په ۱۸۱۸ م کال په اخیر کی کشمیر اشغا ل کړاو یو کا ل و روسته ډیره غازي خان هم د رنجیت سنګ لاس ته ورغله.(۶۱)
د رنجیت سنګ د پر له پسي تیر یو په لړ کی یو و اري بیا نو بیت پیښو ر ته ور سید یار محمد خان د پیښور حکمر ان د کابل خخه کو مک وغوښت او عظیم خان په بیړه خان پیښور ته ورساوه او د ر اجا په مقابل کی یې ډیر خلک د جهاد په نوم ر اټول کړل خو رنجیت سنګ د با ر کزي و رو نو تر منځ په نفاق اچو لو بر یالی شو با رکزي پیښو ر ي و رو نه په پټه کی د رنجیت سنګ پر خوا شول او پیښو ر د سکانو په لاس کی پر یو ت د هغه اداره ئی بیا سلطان محمد خان ته و رکړه چی هر کال به ئی د پنجاب سکانو دو لت ته مالیه و رکوله . (۶۲).
په ۱۸۲۸-۱۸۲۹ م کلو نو کی مشهو ر مبارز سید احمد د هندد او تر اپر دیش د سیمی خخه سر پو ر ته کړ د غه اسلامی جنبش چی په و هابی جنبش سر ه مشهو ر دي د سکانو پر خلاف ئي د جهاد د نارې و ر پو له، پیښو ر او د هغه شاو خو اسیمي یې بیا د سکانو خخه از ادي کړي د غه ستر مجاهد په ۱۸۳۱ م کال د هز ار ه سیمی د بالاکو ټ په بر خه کی د یو ي سخا سخ جګړي په جر یان کی شهید شو .د سید احمد د

---

(۶۱) پـه نو لسمه پیړی کی افغانستان، ۳۰۶ مخ .

(۶۲) د مبلسو ن ، افغانستان تار یخ ، ۳۲۶ مخ .

مرگ سرەسم دغه جنبش کمزوری شو . پیښو رهزاره او نورو جات بیا دسکانو لاس ته ورغلل. (٦٣)

دنولسمې پیړۍ د دریمې لسیزې په اخیر و کلو کې بیا دسنخینی اسیاانځوول سخ په خرابیدو شو ، هغه داچې په انگلستان کې له ۱۸۲۵ م کال را په دیخوا په منظمه توگه اضافې تو لیدمنخ ته راغی او انگلستان دبازار یابی په خاطر دسند په دریاب کې دبیړۍ چلو لو هیله وکړه او په ۱۸۳۰ م کال کې دبرنس له خوا دسند دریاب کښتنی جریان وڅیړل شو او په ۱۸۳۱ - ۱۸۳۳ م کلو نو کې بیا برنس افغانستان، بخارا، ترکمنستان او ایران نه مفصله لیدنه وکړه . (٦٤)

په عین وخت کې دایران او تزاری روس اتحاد هم د ۱۸۲۸ م کال وروسته هرات تهدید اوه او په ۱۸۳۲ م کال کې ئې په افغانستان باندې یرغل وکړ. کله چې شاه شجاع په لودیانه کې دایران یانو یرغل نه خبر شو ،یو اری بیا ئې خپل غوښتنې انگلیسانو او رنجیت سنگ ته وړ په یاد کړې او شاه شجاع په ۱۸۳۳ م کال کې د دوست محمدخان د راپرزولو د پاره د اجیرو پوځونو په ملگرتیا افغانستان خواته راغی، کندهار محاصره شو ، خو دوست محمدخان په یوه ځان کندهار ته ورساوه او شاه شجاع اجیر پوځونو ته ئې ماتې

(٦٣) افغانستان و هندبرتانوی ، ٦٦ - ٦٧ مخونه او حیات افغانی ۱۳۳ مخ

(٦٤) انگلستان دافغانستان پر ضد ، ۲۲ - ۲۳ مخونه .

و ر کړ او شاه‌شجاع یو و ار ي باماتت ز ره‌لو دیانی‌ته‌وګرځیده.
(٦٥)

په همدې‌اخ او ډو ب کې‌چې‌دوست‌محمدخان کنـدهار ته و لاړد پنجاب‌سکانوچې‌او س دشمالی‌هنددېر غښتلی دو لت‌ؤ پیښو ر ئې‌له افغانستان‌څخه‌جلا کړ،دو ست‌محمدخان‌دعامه‌عقا یدو دفشا ر له‌مخې‌چې با ید‌پیښو ر دسکانو دمنګو لو څخه‌خلاص کړل‌شی‌لو سړې‌یې‌د امیر لقب‌و،مانه‌چې‌دامیر دتاج‌په‌سر و نو سر اسم‌په ډیره چو په چـوپتیا سر ه‌دسیاه‌سنګ‌دعیدګاه‌په‌جو مات کې اجر اشو ل‌او د مر حـو م‌میر و اعظد ز و ي‌په‌ذر یعه‌د در انی احمدشاه دتاجپو شی‌په پیر و ي‌د غنمو و ږي ددوست محمد خا ن په پګـړ ي کې وتپو سبه اوپوه اندازه نوی پیسی چی دده په‌نو م ضر ب‌شوي وي پـه‌دو ست‌محمد خان‌باندي و شند ل شوي حاضر ینو چی شمېر ئی‌لنږ و و تـبیعت و کړ او دماز دیګر دلمانځـه په‌دعـا کی چی په هـماغه ساعت په جو مات کی اداشو ـ ددو ست محمد خان‌نو م‌امیر المؤ منین‌ په‌نامه و لو ستل شو . ( ٦٦ )

امیر ډیر ز رد غزا په نو م د پیښو رد راګر ځولو دپاره پو ځو نه راغو نډ کړ ل او‌د١٨٣٦ م کال دفبر و ري‌په‌سیاشت کی

---

( ٦٥ ) ، افغانستان وهندبر تانوي ، ٦٩ـ ٧٠ مخو نه

( ٦٦ ) په نو لسمه پیړي کی‌افغانستا ن ،ـ ١١١ مخ

جلال آباد خواته روان شو. امیر د کابل نه دخپل حرکت ـ دمخه په لو دیانه کې د انګلیسسیاسی نماینده کپتان‌و یداوهمد ارنګه دبر تانوي هند ګورنرجنرال لارد بنتنک او تزاري روس دولت په‌نامه لیکونه لیږلي و واو په خپلو لیکونو کې ئې ـ دانګلیسی او تزاري روسیې ددو لتونو نه دسکانو په مقابل کې مرسته غوښتې. وه‌مګر د انګلیسانو ځواب، دپوره ډاډ ورنه و،یوازې دسو دا ګري په چارو کې ئې دیوه نماینده درالېږلو هیله څرګنده کړې وه. (٦٧).

امیر دوست محمد خان دهمدې کال د اپریل په‌میاشت کې د ډیر پوځ‌او ولسي خلکو په ملګرتیا دبا سول او خیبر د ریله لارې پېښور خواته کوز شوولی داچې امیر پوره‌اقتصا دي شتمنې او نظامي قدرت نه درلود،درنجیت سنګ‌دسولې‌پیغا م انتظا رئې درلود او له دي کبله ئې په وړاندې تګ کې بیړه نه کوله، رنجیت سنګ چې‌له واقعا تو نه بې خبر‌نه‌وژرتر ژره‌ئې د امیر او دهغه ورو رسلطان‌محمدخان ترمنځ د نفا ق تخم و شیند ه‌او سلطان محمد خان د دوست محمدخان‌په‌غیا ب کې رنجیت سنګ نماینده داکتر هارلان (امریکائي) سره درشوت‌په ذریعه سازش وکړ هارلان‌په‌خپله‌داسې لیکلي‌دي:

«ما په‌اسانۍ‌سره دوکړای‌شول چه سردارسلطان‌محمدخان د پېښور

---

(٦٧) Afghanistan, past and present, Moscow, 1982 P. 100

په وعده و رکولو سره دلسو زرو عسکرو په ملګر تیا د جنګ

ډګر څخه وباسم » . ( ٦٨ ) . .

په دي توګه دامیر دغه ارزو چي پیښو ر دسکا نو دمنګولو

څخه خلاص کړي د نا کامی سره مخامخ شـو . امیر

او دهغه پوځونه دبې نظمی او ما یوسی په نتیجه کی بیرته

لو سړي جلال آبا د او بیا کابل خوانه راوګر ځیدل .

داچی دپیښو ر راګر ځول دامیر ستره هیله ګڼل کید ه بیا هم

امیر د۱۸۳۷ م کا ل په پسرلی کی خپل زوي اکبر خا ن تر

قو ما ند ه لاندي یو پو ځ دخیبر په دره پیښو ر میدان ته و رکو ز

کړ او جمرود ته نږدي دافغان او سکه پو ځو نو تر منځ سخته

جګړه پیښه شوه سکانو سخته ماتې وخوړه او ددوي ستر جنرال

هر سنګ هم و و ژل شو ، مګر د افغانانو دغه ستر بر یا لیتوب

دامیر په ذریعه تعقیب نه شو . ( ٦٩ ) .

د۱۸۳۷ م کال د سپتمبر دمیا شتې په ۲۰نیټه ا لکساند ر برنس انګلیسی نماینده دسو داګري په چارو کی کا بل ته راورسید ه نوموړي په خپله داسی لیکی : « افغانی رسالـه ئی سپارو په ډیر شان شوکت او عزت سره زما مخی ته راغلل چی د امیر صاحب دزوي اکبرخا ن په قوما ند ه کی وو هغه

---

( ٦٨ ) افغانستان درمسیر تاریخ ، کابل ، ۱۹٦۷ ، ص ۵۱۸ .

(٦٩) Louis Dupree, Afghanistan, P 363.

زما دعزت او احترام کولو دپاره زه په هغه هاتی کښېنولم
په کوم چې په خپله سردارسپورواودپلاردرباوته ئې بوتلم هلته زسو پر
دزړه لـــه کـــو ســـی ډېر عـــزت او احـــترا م و شـــو بلـــه
ورځ. امیر خاص مجلـــس تهو غـــوښتم اوزما ډېردارسـدارئی و کړ
. دري و رځـــی و روستـــه پـــه یـــو پټ مـــصلحـــت کـــی
امیر دخپل زړه حال ښکاره کړ دهغه دغو ښتنی اصلی مقصد
په ډېر و خبر و کی پټ و . د رنجیت سنګک پر خلاف ئی دانګیلسانو
نه مرسته غو ښتله هغه وو یل زه د شاه شجاع په جـګړه کی
نښتی و م نو ر نجیت سنګک رانه پیښو ر واخیست چه هغه پري
هیڅ حق نه د ر لو ده »ٚ. ( ۷۰ )

بر نس په اسانی دامیر دوست محمـد خان سره موا فقـی ته
و رسید چې د پیښو ر په اخستلو کی به دده نه پلوي کوي .
په مقابل کی‌امیر هم د ي ته تیار و چې د انګلیسی نما ینده
ګانـو سره دیو مساوي الحقوق اتحاد او تـړو ن لاسـلیک کـړي او
افغانستا ن ته د انګلیسی ما لو نو دوارد ولو د پاره مرسته و ـ
کړي نو مو ړ ي د موافقی د لا سلیک دا جازې‌دپاره لند ن‌او
کلکتی و ا کمنو ته سترګی په لاره و، څه و خت وروسته دبر

( ۷۰ ) دمیلسو ن ، تاریخ فغانستان ، ۳۳۵ مخ ،

تانوي هند گورنر جنرال لارډ اکلینډ د مشاورانو مخفي اوسیا

سي څانګې امر مکناټن د لیک ځواب برنس ته راولیږد، لارډ

او مکناټن دهغه ګڼ شمیر سرجراغو ښتونکو نقشو له مخې

چې دافغانستان پر خلاص ئي دجګړې دپاره په نظر کې دراود

لې دبرنس دوامداره کو ښتونه ئي بې ګټې او عبث و-

بلل، هغه په دې توګه خپل نماینده ته لیکلي و «لارډ اکلینډ

دبرنز هغه وعدې چه افغانې واکمنو ته ئې ورکړې دې

ردوي ځکه دهغه دستوالعمل سره چې دهتر لاسه کړې و همدا

رنګه هنددختیځ شرکت دعمومي سیاست سره مطابقت نه لري (۷۱)

په دې دول دامیر ارزو چې باید پیښور دبېر دو څخه بېرته-

راوګرزول شي تر سره نه شو ځکه چې بر تانوي استعمار

چیانو دپیښور موضوع سره خاصه علاقه اود لچسپي درلوده

هغه په دې شان وه چې د لندن او کلکتې واکمنو د پنجاب

ددولت د نیولوله پاره ئې ریجي پلان درلوده. د پنجاب حکامو

ګټه یې خپله ګټه بلله. په امیر باندې یې پیرزوینه نه درلوده

چې پیښور خپل حق دار ته ورکړل شي او پر خلاف یې په هره

---

(۷۱) قاضي عطاالله خان، دپښتنو تاریخ، لومړی ټوک،

کابل، ۱۳۵۶ - ۲۹۹ مخ.

سمکنه وسیله لاس ته ورځي کله چي د پنجاب او افغان۔
دولتونو ترمنځ سیاسي اړیکې لا خرابي شوي وي .
د برتانیې واکمنو نه غوښتل چي د پنجاب هوس په سر کي در-
درلو ده ایلکی دوي دهغه پرچلي نقشي له مخې چي ترتیب
کړي وه داسې فعالیت کوم چي افغانستان ئي دسیاسي -
اقتصادي او نظامي پلوه ډیر کمزوري کاوه، همدغه خو شیده څکه دوی
په زړدي و ختو کې دافغانستان لاندي کولو پلان درلود
دافغانستان او هند په خبره پولو کي جنگي تیاري روانو
چي دسمالي اعلامیې سره سم دغه تیري دافغانستان پر
اولس باندي تحمیل شو .

## ب-د برتانیې-شاه شجاع او رنجیت سنگ ترمنځ تړون:

د برتانیې هیئت په رخصتیدو ، په هرات باندي دایران تیري
زیاتو او دروسي هیئت کابل ته راتگ انگلستان
دي ته اړ کړل چي د افغانستان په برخه کي نوي تصمیم
ونیسي تر څو چي دوي خپلي استعماري گټې په افغانستان
او په سیمه کي وساتلاي شي .

برتانوي نماینده گانو ۱۸۳۸ م کال اوړي په سمله
( دهند په شمال ) کي تیر کړ . انگلیسي لیکوال کي -
دسملې غونډې داسې تشریح کوي : دهمالیه دغرو-

په لمنه دسملی په سازش کو ونکی ښارکی لارداکښلیښداو د هغوی دنشاو رانو خپل ځانونه داسی تکبړ ه او تازه وساتل چی دزړ ور تیاهغه ځای ته او رسیدل چیری چی د کلکتی په ستومانه کو ونکی فضا کی نه شو ای رسید لی . ( ۷۲ ) .

دوي د غونډو په جریان کی تصمیم ونیو چی دوست محمد خان دبر تانیی گټی په افغانستان اوپه سیمه کی نه شی ساتلای نو دده پرځای باید داسی څوک انتخاب او پر تخت کښینول شی چی هغه په رښتیا دبر تانیی د گټو ساتندوي وي او په عین وخت کی دلند ن او کلکتی تولی فیصلی په خو ښی سره ومنی ، همدارنگه دبیښو راو یانو رو هغو افغانی سیمو پر ته غو ښتنه ونه کړي کوم چی درنجیت سنگ له خوا نیول شوی دي . البته د دي شرایطو سره ډیر سو افق او منا سب سړي شاه شجاع و چی د ۱۸۳۸ م کال د می د میاشتی د ۲۰ نیټی په یاددا شت سره د ده څخه دبر تانیی دولت ملاتړ اعلام شو . او په عین وخت کی ا لکساند ر بر نس او کپیتان وادي هم دشاه شجاع انتخاب پرځای و باله ـ او زیاته یی کړه چی شاه شجاع به په افغانستان کی استقبال شی .

---

( ۷۲ ) اولس یار ، انگر یزي استعمار او افغانستان ، ۱۰۲ ـ ـ ۱۰۳ مخونه .

( ۷۳ ) بر سیره پردي فیصله وشوه چې دتیري په صورت کې به درنجیت سنگ پوځ د انگلیس لارښوونې لاندي پر کابل یرغل کوي او دهمکاري په خاطر به دشاه شجاع تر قوماندي لاندي هم لشکر تیار یږي او مصارف به ئې دانگلیس حکومت په غاړه وي یو لوړرتبه انگلیس افسر به د دوي سره ملگري وي . دپخوانی پاچا یعنی شاه شجاع دپوځ مشري به انگلیسی افسر کوي . ددي فیصلي دپلی کولو د پاره مکناټن لاهورته ولیږل شو چې رنجیت سنگ دي اتحادته راوبولی او ۱۸۳۳ م کال وعده گانی بیا وراړي بیا ور په یادکاندي او دي ته یې تشویق کړي چې د دوي سره دافغانستان په تیري او لاندي کولو کې ونډه واخلی . هماغه وچې د ۱۸۳۸ م کال دجون دمیاشتي پر ۲۶ نیټه په لاهور کې د شاه شجاع ـ رنجیت سنگ او برتانیې ترمنځ دري اړخیز تړون په ۱۸ مادوکی لاسلیک شو په دي توگه :

۱ ـ شاه شجاع دخپل ځان خپلو وارثانو او خپلو جانیشینانو له لوري نه دمالکیت هرقسم دعوي دهغه تولوسیمو په هکله پریږدي، کومي چه دسند درياب په دواړه غاړو پرتي دي چي اوس په هغوي باندي درنجیت سنگ قبضه ده یعنی کشمیر او د هغه غرب ، شمال او جنوب پولو په گډون، دا ـ

---

( ۷۳ ) افغانستان و هند برتانوي ، ص ۱۱۱ ـ ۱۱۳

ټک کلا، چچ، هزاره، کیمبل، اسب او د هغې لاندې سیمه چې
دسند دریاب په چپه غاړه پرته ده، دسند په ښۍ غاړه باندې
پېښور یوسفزو او دختکو سیمو په ګډون، اشنغر، مچنۍ، کوهاټ، هنګو او هغه نورې سیمې چې د پېښور سره یوځای دي
آن تر خیبر درې پورې، بنو وزیرستان، دوړ، ټانک، کرک، کالا باغ، خوشحال ګړ او د هغه نورې سیمې، دیره اسمعیل خان او د هغې لاندې سیمې د دیره غازي خان په ګډون، کوټ، سټې، عمر کوټ او د هغې نورې سیمې. سنګور، هرنې، دجل، جاجیپور، راجنپور، د کچ دریو اره سیمې، سنکیره او د هغه نورې سیمې د ملتان ولایت چې دسند دریاب په چپه غاړه پروت دی د غه پورته ټولې سیمې به د مهاراجه مالکیت ګڼل کیږي. شاه شجاع نه اوس په دې سیمو باندې څه تعلق لري او نه به ئې راتلونکي کې ولري. دا به د مهاراجه او د هغه د اولادو لمسیانو مالکیت وي.

۲ـ کوم قومونه چې د خیبر په غاړه او سیږي هغوی ته به د دې کار اجازه نه وي [illegible] ي د خیبر په دې غاړه داکې [illegible] ي یا بل څه قسم په [illegible] وکړي. هر چا چې په یو حکومت کې د سرکاري مالیې د نه ورکولو نه د بل په حکومت کې پناه واخسته نو د غه سړي به بیا خپل حکومت ته ورکول کیږي همدارنګه هیڅوک به هغه و یا ئه نه بندوي کوم چې

دخیبر دتنګی څخه را وځي او دپښتو خوا نه دفتح ګړ کلاته دښېلواو به ور کوي .

۳- دهغه پښتوانې تړون پراساس کوم چې دمها راجه او دبرتانیې حکومت تر منځ شوي دي هیڅ چا ته دا اجازه نشته چې دمها راجه د اجازې پرته دستلج دسیند غاړې ته نه سي غاړې ته پوري وځي همدا رنګه هیڅوک نشي کولاي چې دمها راجه دا جازي پرته دسیند دریاب څخه تیر شي .

۴- شکارپور او دسند هغه سیمې په هکله چې دسند دریاب په سند غاړه پرته ده هر هغه جایزه او مناسبه فیصله چې دسر کلاډویډ او مها راجه رنجیت سنګ د هغو شوا ړیکو په نتیجه کې چې ددوي تر منځ موجودې دي .و شو مشاه ته به هغه فیصله منظوره او دمنلو وړوي .

۵- هر کله چې پاچا خپل حکومت په کابل او کندهار کې پیاوړي کړي نو هغه به هر کال مها را جه ته دغه لاندې شیان را لیږي: ۵۵ آسونه چې اعلی نسل، ښکلې رنګ او ښه رفتار ولري -۱ ایرانی توري، او ۵ ایرانی خنجرونه -۵ ۲ ښې کچري رنګا رنګ تازه او وچې میوي چې سر دي یا سشکې خو اړه او خو ندو رځتکې (دابه تول کال را لیږل کیږي). داشیان به دکابل د دریاب له لاري پیښو رته را-لیږل کیږي: انګور ، انار ، سنې، بادام، ممیز ، پسته، چارمغز ، هر یو به په زیاته اندازه تیار یږي .

همدا رنګه په مختلفو رنګو اعلی دا طلس تو کر ان، پوستین ، کمخاب، چې دسرو او سپینو زرو کار پري شوي وي، ایرانی غلي،

دا په‌تېول په‌حساب کې یو د پاسه‌سل قلمه‌وي .د ا پو ر ته تېول شیان
به پاچا هر کال سهار اجه ته راستوي .

٦- هر یو لو ر ي به‌بل په‌سساو ي الفاظو کی مخاطبوي .

٧- دافغانستان هغه سوداگران چی لاهور - امرتسر یاد
سهار اجه‌نو رو تر لاس‌لاندي سیمو ته‌دسوداگري په‌خاطر ځی-
هغوي ته به په‌لاروکی هیڅ قسم تکلیف‌نه‌ورکول کیږي‌او نه به
هغوي‌څوک‌منع کوي-بلکې دهغوي دتللواورتلاو دپاره‌به په
جدي‌توگه‌اسانتیاوي برابريږي.سهاراجه‌وعده کوي‌چی‌هغه‌به
هم‌په‌دي‌توگه‌دافغانستان هیواد سره‌خپل‌چلنداو رويه‌ساتی.

٨- سهاراجه‌به‌هر کال پاچاته‌دالاندي‌شیان د دوستی‌له‌مخی‌را
ستوي : ٥٥ شالونه ٥٢تانه‌ململ، ١١ لوپټی، ٥تانه کمخاب، ٥
خادرونه، پنځه پټکی، ٥٥ورې دباري وريجی (چی‌دپیښور
مخصوص پیداوار دي ).

٩- که‌چیري دسهاراجه کوم افسر داسونو یادبل کوم شـی
اخستلو دپاره افغانستان ته‌ولاړشي همدارنگه یادپاچـاکـوم‌افسر
دشالونو دتوکر اخستلودپاره پنجاب‌ته‌ولاړشي‌په‌هغه‌صورت‌کښې
چی تر ١١ زره روپو پوري قیمت ولري‌هر یو لوري به‌د
هغه‌افسر په‌برخه کی‌پوره پاملرنه کوي‌او دهغه‌دکارونو سر
ته‌په‌رسولو کی‌به‌لازمی‌اسانتیاوي برابروي .

۱۰ـ کهچیري د دو اړو هیوادو نود پوځ اقدام په یوځای باندي واقع شي نو په هیڅ صورت به دغتې غوښتي ژ و بلهنه کیږي .

۱۱ـ کهچیري سهاراجه خپل کوسکی پوځ پاچانه ورکړي لو تې شوي سال لکه جوا هرات، اسونه، لويه او واړه وسله چي دبارکز و نه پهلاس را شي هغه بهدواړو خواوکی پهمساوي بر خه ویشل کیږی نو کهچیري بیا خه سال پاچاته دسهاراجه پوځ د کومکنه پرته په لاس ورغله نو پاچادا وعده کوي چي دهغي نه بهیوه برخه د دوستي له مخي سهاراجه ته لیږل کیږي .

۱۲ـ دواړه لوري به همیشه یوبل ته خپل سفیران د سندو نو او تحفو سره لیږي .

۱۳ـ ددغه تړون داصل مقصد دحصول او رعایت دپاره که چیري سهاراجه دپاچاخه دهغه دپوځ کومک و غواړي نو پاچا اقرار کوي چي زه بهدا پوځ دخپل یولوي افسر دقوماندي لاندي هغه خواته لیږم همداشان ددغه تړون داصل هدف دحصول دپاره هر چیري چي پاچاوغواړي نو سهاراجه به هغه . ته کوسکی پوځ چي هغوي به مسلمانان وي او دیولوي افسر تر قوماندي لاندي به ان تر کابل پوري دجګړي د پاره ورکوي . کهچیري سهاراجه پیښور ته راشي نو پاچابه خپل یو شهزاده دهغه دملاقات دپاره رالیږی . سهاراجه به هغه دخپلي درجي اوونډي برابر درانلو اود رخصتید و په وخت کي به عزت کوی .

۱۴ ـ د دريو اړو حکومتونو يعنې برتانيې سره او شاه شجاع
دوستان به دوستان او دښمنان به د يو بل دښمنان اوي .

۱۵ ـ شاه شجاع اقرار کوي چې د خپل مقصد حاصلولو نه وروسته به
مهاراجه ته دوه لکه روپۍ نانکشاهي يا کلدار د هغه نيکۍ نه ادا کوي
د کوم وخت نه چې د سکانو پوځ د ده سره کابل ته د پاچاهۍ نيولو د
پاره روان شي. د دې رقم په بدل کې به هغه پوځ تقريباً پنځه زره
سپاره او پياده وي. دغه پوځ به ټول مسلمان وي او د پېښور په
سيمه کې به د پاچا د کومک د پاره ساتل کيږي البته پوځ به د پاچا
سره د کومک په خاطر د برتانيې حکومت په مشوره او د مهاراجه په
مشوره هغه خواته ليږل کيږي، نو کله چې څه مهمه معامله غرب پلو
ته پېښه شي نو د هغې په هکله هر څه تصميم چې په هغه وخت مناسب
وي د برتانيې او سک حکومتونه به يې عملي کوي . که چيري
مهاراجه ته د پاچا د پوځ اړتيا پيښه شوه نو په دې صورت کې به هغه
اندازه روپۍ چې خو سره سو دې د پاره پاچا کومک ورکړي دي د دې
رقم څخه کميږي. د برتانيې حکومت د دې رقم منظمه ورکړه په ذمه
واري اخلي ـ تر هغه وخت پورې چې د دې تړون شرطونه رعايت
او ساتل کيږي .

۱۶ ـ شاه شجاع اقرار کوي چې د خپل ځان، خپلوانو او د خپلو
جانشينانو له لوري به د سند د سيند په غاړو پرتو سيمو باندې د
هر ډول مشرۍ او باج اخستلو دعوا نه کوي، دا ټولې سيمې به د سند
د ميرانو مالکيت وشمېرل شي، خو شرط به دا وي چې شاه شجاع به

دسندله‌سیر انو څخه دبر تانیی‌دحکو مت په‌سلا او سنځکړتو ب یو ه اندازه پیسی چی ترپنځلسو لکورو پیوپوري به کیږي ، واخلی او هغه‌به سهار اجه‌ر نجیت‌سنګ‌ته‌ور کوي . کله‌چی دا پیسی‌و ر- کړا ي شو ي‌نو د ۱۸۳۳ م کال دمارچ د ۱۲ نیټی‌ترو ن‌څلو رسه ماده سنسو خ‌ګڼل کیږي.او دسهار اجه‌او دسندمیر انو تر منځ بسه د معمو ل په‌تو ګه لکه‌چی څنګه‌دستو ر دي دلیکو نو او تحفو تلل ر اتلل به‌جار ي شی .

۱۷- کله‌چی‌شاه‌شجاع په افغانستان کی دخپل‌حکو مت په‌پیا و ړتیا بریالی‌شی‌نو هغه‌به‌ده‌ر ات‌په‌حکومت‌باندي یر غل نه‌کو ي‌ا ونه به‌خپل‌و ر ار ه‌څو رو ي .

۱۸-شاه‌شجاع دخپل‌ځان دخپلوو ارثانو اودخپلوجانشینانودلو ري نه‌اقر ار کـو ي‌چی‌ز ه‌بـه‌دبرتانیی‌اوسك‌حکـو متونو د علـم‌او ر ي او منظو ر ي پر ته‌بل‌کو م حکو مت‌سر ه‌تړو ن نه‌کو م او ز ه به‌د هر هغه‌حکو مت‌مقابله‌کو م چی‌په‌زو ر باندي د بر تانیی‌ا و یاسك پر حکو مت باندي یر غل کو ي .در ي واړه حکو متو نه‌یعـنی - بر تانیه،سهار اجه ر نجیت سنګ اوشاه شجاع دتړو ن په پو ر ته‌شر طو نو باندي متفق‌دي‌او په‌خو ښی‌باندي ئی منی . دپو ر تنیو ذ کر شو و شر طو نو او سو ادو څخه به‌هیڅکله انحر اف نه کیږي‌او دا تړو ن‌به‌دهمیش‌دپار ه عملی‌کیږي او دهغه‌وخت‌نه‌عمل پر ي کیږي

چې اقرار کوونکی لو ري په هغه باندي خپلي امضاء گانۍ او مهر و نه و لگو ي .

د لاهور ښار ـ ۱۸۳۸ م کال د جون د میاشتی ۲۶ نیټه دا کلیند ـ رنجیت سنگک ـ او شاه شجاع امضاء گانی . (۷۴)

پورتنی دري ارخیز تړون داستعمارچیانو هغه وسیع تجاوزي پلانونه په گوته کوي کوم چې د لندن کاپیتالیستی داره ارانو له خوا دا فغانستان او د سیمی غارتو لو د پاره سنجول شوي وو . دوي خو لا پخوا د هند نیمی وچې ته راغلی و وا و د هند سرشاره منابع یې د کلونو کلونو راهیسی په غارتگرا نه توگه استثمارو ل . کال په کال د نو یو سیمو لاندي کو لو او بیا په هغه کې د انگلیسی سرمائی په کاراچو لو د پاره هڅې درلو دلی چې د خپلو اضافی مالو نو د پاره د خر څلاو بازارونه پیدا کړي او د نو رو استثمارو لو د پار زمینه برابره کړي چې په دي توگه پخوا نی پاچاچې لاترا و سه ئې په لو دیانه کې د مستمري معاش په و اسطه شپې سبا کو لی او په هیڅ صورت سره ئې دافغانستان څخه نماینده گی نه شوا ي کو لاي ، خو لندن د خپلو استثمار ي گټو د پاره د ده ته داسی رول و ر په غاړه کړ چې گو یا سدوزي شاه شجاع هغه مستحق شخص دي چې د افغانستان په گوټ گوټ کی محبو بیت لري او د یر ژ ر به د لاهو ر د تړون د موا د و پرا ساس د خپل پلار نیکه په تخت کښینی .

---

(۷۴) د پښتنو تاریخ ، دو یم جلد ، ۵ ۱ ـ ۴ ۲ مخونه.

ج : د شاه شجاع بیا هلی ځلی د تخت د پاره :

کله چی شاه شجاع په ۱۸۰۹ م کال په ننګرهار کی د شاه محمود د لاسه ماتی وخوړه نو د کندهار خوا ته ولاړ او خلو رمیاشتی ور وسته ئی کندهار و نیو . خو دده دا کامیابی سوقتی وه او دیبر ته د ګومل له لاری پنجاب ته ولاړ او د پنجاب په ساهیوال کی ئی د رنجیت سنګ سره ولیدل . وروسته بیا په راولپنډی کی د خپلی کورنی سره یو ځای شو . په دوو کالو کی ئی دوه ځله په پیښور یرغل و کړ خو موفقیت ئی په نصیب نه شو .

په ۱۸۱۲ م کال کی شاه شجاع بیا د کشمیر والی عطامحمد خان سره بندي شو . کله چی فتح خان د ۱۸۱۳ م کال د فبروري په میاشت کی عطامحمد خان ته ماتی ورکړه شاه شجاع بیا د رنجیت سنګ استاځیو ته وسپارل شو چی هغو لاهور ته واستاوه . (۷۵)

رنجیت سنګ چی په ۱۷۹۸ م کال کی د شاه زمان له خوا د پنجاب حاکم مقرر شوي و او س ئی په ډیر چل او خیانت سره شاه شجاع و نیو او د اسی تنګی یی ورسره وکړه چی مقصد ئی له هغه څخه د مشهور الماس کوه نور تر لاسه کول و . (۷۶)

شاه شجاع په ۱۸۱۳ م کال کی په پټه له رنجیت سنګ څخه ځان خلاص کړ او د کشتوارد راجا په سرسته ئی پر کشمیر بریدو کړ

---

(۷۵) اولس یار ، انګریزي استعمار او افغانستان ، ۳۸ - ۳۹ مخونه .

(۷۶) سو نتهستهوا رتډ الفنستن ، د کابل سلطنت بیان ، کابل ، ۱۳۶۱ ، دو یم ټوک ، ژباړونکی داکتر محمد حسن کاکړ ، ۳۲۸ مخ .

و لی‌گټه ئی‌و نه کړه او په ۱۸۱۶ م کال دخپلی کو رنی‌او شاه زمان سره په‌لو دیانه کی یو ځای شو .(۷۷)

په ۱۸۳۳ م کال کي دشاه‌شجاع خوب او خیال بیاعملی جنبه پیدا کړه هغه داچی‌دو ست‌محمد‌خان‌دانگلیسانو پیچلی‌پالیسی‌سره‌توافق‌و نه شو ده ـ انگلیسانو مخالفت پیل کړاو شاه شجاع ئی یو ځل بیا دافغانستان‌نیولوته‌تشویق کړاودانگلیس‌سیاسی‌نماینده کپتان‌ویدله‌خوا نقشه‌و ر ته ترتیب شو ه ، همدا ر نگه‌دا نگلیس‌سیاسی‌نماینده ونجیت سنگ‌ته‌و عده‌و ر کړه‌چی‌د کو مك‌په‌صو رت کی به د پیښور او دهغه نو ر و ګاو نډ یو سیمو مستحق شی. دسو قیاتو مصا رف‌یی دګور نر جنر ال و یلیم‌بنتنك William Bentinck-1828-1835 په‌اجازه‌دبر تانوی‌هند او پنجاب‌حکو مت‌له‌خو اور کړل‌شو ل .(۷۸)

شا شجا ع په۱۸۳۴م کال دجنوری‌په‌سیاشت کی دو ست محمد خان درا پرزولو دپاره دلو دیانی څخه راروان شو او دلیږپوځ سره‌داباسین څخه را پوریو ت او په‌شکا ر پور کی‌ئی د درا نی پاچا یو جاګیر په‌زو رو اخیست‌او دخپل پوځ شمیر یی ۲۰ زره‌تنو ته ورساو ه.او په‌رو ړي Rohri کی‌یی‌دسنداميرانو ته‌ماتی‌و ر کړ ه

---

(۷۷) ،انگر یز ي‌استعمار او افغانستان ، ۲۴ مخ

(۷۸)،افغانستان وهندبر تانو ي ،ص ۷۰ .

او کندهار خوا ته راغی او د خوجك کوتل په دره کی یی
کندل‌خان مات کړ او کند هار محاصره شو .

د کندهار ښار ګرزوورونه سود کابل نه دخپل کشر ي‌و رور
دو ست محمد‌خان‌څخه‌د پرله‌پسي استاځو پـه ذريعه کومك و غوښت
مګر دو ست محمدخان پخواله‌دي‌چي‌دور و نو کومك‌ته‌ورسيږي،لو سړی
يې‌دانګليسانو نبض‌و نيواو خپل استاځی‌يې‌په‌لو د يانه کی‌دانګليسا
نوسياسی‌نمانيده ته ولېږه‌چي‌له‌هغه ځا يه و رته يو کـمز و ر ی‌او
دوه‌ګو نی‌ځو اب و رکړشو چی دهغه مطلب داو:
دهندبر تانو ي نماينده ګان پخپله په‌دي مسئله‌کی شر يك‌نه‌دي
لکن‌شا شجاع‌ددو ي پر خو ښه او رضا دا کار کـو ي . (۷۹)
دو ست محمد خان دځـو اب‌تر لاسه کـولو و رو سته‌په ډير ه‌بيړه‌ځان
کندهار ته‌ورساو ه او د شاه‌شـجاع اجـير پوځو نو ته چی‌د کمپل
انګليسی‌افـسر ترقو ماندي‌لاندي و و ماتی و رکړه‌اجير کمپل بندي
شو او شاه شجـاع دفراه لـه لار ي کامـر ان * د شاه‌محمو د
زو ي‌ته‌چی په هغه‌و خت کی‌يی په‌هرات کی حکو مت‌درلو د د
سر ستی‌په هيله‌و لاړ‌مګر ډير ژ ر بی‌له کو سی‌نتيجی‌اخستو څخه دجو -

(۷۹) د سيلسو ن ،دافغانستان تار يخ،۹ ۳۲-۳۳مخو نه .

* - کامرا ن‌تر ۱۸۴۲م کال‌پور ی‌د هرات‌حکمران‌و

ین، کلات او شکارپور له لاري پیر ته لو دیاني ته ستون شو.(۸۰)
په ۱۸۳۸ م کال کې یو ځل بیا د افغانستان سیاسي فضا د استعماري
هیوادو په لاس و هنه خره پرېشوه او بر تانوي استعمار چیانو
د امیر دوست محمد خان د لري کولو د پاره ملا وتړله. اکلیند او دده مشاوران
دې نتیجې ته ورسېدل چې د امیر دوست محمد خان پر ځاي داسې شخص د
افغانستان پر تخت کښېنوي چې هغه په ټول صداقت او فاداري
دد وي د پلانو نو د عملي کولو سره موافق وي او په عین موقع کې
د پېښو ر دعوي څخه د ر نجیت سنګ په ګټه تیرشي چې البته په دې
صفاتو موصوف سړي هغه شاه شجاع و چې په لو دیانه کې و رته د داسې
ورځې د پاره مفت معاشونه ور کول کېدل .
د ۱۸۳۸ م کال د سې دمیاشتې د ۱۲ نیټې تاریخي یاداشتو نه د
ګو رنر جنرال سیاست په دې توګه ارزیابي کوي «... د ر نجیت
سنګ په ګډ توافق سره د شاه شجاع الملک څخه ملا تړ او همکاري کو و
تر څو دي پاچاهي ته و رسیږي او د افغانستان په ختیځو بر خو کې
خپل قدرت ټینګ او دسك حکمر انانو سره سوله وکړي او په دې
توګه زموږ ګټې وساتي » . (۸۱)
د ۱۸۳۸ م کال د سپتمبر د میاشتې په لسمه نیټه په هند کې د
بر تانیې د لوا و اعلی قوماندان امر صادر کړچې د افغانستان د پار

---

(۸۰) په نولسمه پیړۍ کې افغانستان، ۱۰۱-۱۰۲
مخونه .

(۸۱) ، افغانستان و هند بر تانوي ، ص ۱۱۱ .

یو ره تیاري ونیسي.دري هفتی‌و روسته‌داکتو بر په‌لومړی نمته

په‌سمله کی‌داکلیند له‌خوا دافغانستان پرخلاف د جنګ اعلامیه

نشر شوه . (۸۲) دسملی اعلامیه‌چی‌زیاتو تاریخ پوها نو دجعلی

سندو نو مجموعه‌بللی‌ده‌دهند او انګلیستان په و رځ پانو کی هم نشر

شوه . په‌اعلامیه کی‌یی‌د سدوزي شاه شجاع شخه‌د یوه حقیقی‌او

شرعی‌وارث په‌توګه‌یادو نه کړي‌و ه‌اوپه‌عین حال کی دپخوانی‌شاه

له‌د دفاع په‌بر خه کی‌و یل‌شوي و چی‌دشاه‌شجاع شهرت‌په تو ل

افغانستان کی‌په‌اثبات‌رسیدلی دي . دي به ډیر ژ ر د خپلو قواو

سره افغانستان ته داخل شی‌او دخارجی سداخلی په صورت کی

په‌دده‌څخه‌دبر تانیی قواو ي حمایه او پلوي کوي . هماغه‌وه چی‌د

۱۸۳۸ م کال‌دنوسبر دمیاشتی‌په ه ، نیټه دلو دیا نی څخه‌د ا فغانستان

په‌نیت د بر تانوی لښکر و په‌سلګر تیارا و خو ځید او د افغانستان

او لس‌باندي دبرتانوي استعمار چیانو لومړی تیري تحمیل‌شو.( ۸۳)

---

Arthur Swinson, North West Frontier, P 43. -(۸۲)

(۸۳) انګلستان دافغانستان پر ضد دتاریخ پانی ، ۳۸ - ۴۱

مخو نه .

# خلورم فصل

## الف : په هند کی بر تانوی استعمار او د هغه تاثیرات پرافغانستان :

د هند ختیځه کمپنی چی په لومړی وخت کی اصلاً یوه تجارتی کمپنی وه، په ۱۶۰۰ م کال کی دانګلیسی سوداګرو په ذریعه د هند په غربی سواحلو سورت Surat کی تشکیل شوه . کمپنی هغه درلودچی دانګلستان او هند تر منځ سوداګري ته پراختیاور کړي.
دغه کمپنی په ۱۶۳۰ م کال په کلکته کی تجارتی مرکز پرانسته او بیا په ۱۷۰۰ م کال کی و رځه د هند متحده ختیځ شرکت جوړشو او د هند څخه ئی انحصاري تجارتی حق تر لاسه کړ . په ۱۷۷۴ م کال کی بیادبنګال ګورنر د ټول هندوستان ګورنر جنرال په نوم یادشو دغه شخص وارن هستنګس ( Warren Hastings
۱۷۷۴ - ۱۷۸۵ م ) و .

لس کاله و رو سته په ۱۷۸۳ م کال کی دانگلستان پار لمان یو قانون تصو یب کړچی په هغه کی دهنددچا رو دپاره یوه د کنترول اداره، دپارلمان تر تاثیر لاندي تشکیل شوه چی تنه غړي یی در لودل . (۸۳)

د کمپنی د تا سیس کیدو په لو مړ یو وختو په هند کی نه یوازي انگلیسانو جو دو و بلکی د هغه هیواد په ساحلی ښارو نو کی زیاتو ارو پایی استعمار گرو هیوادو امتیازات ترلاسه کړي وو . خو د هند د نیولو دپاره دوه ستر رقیبان انگلستان او فرانسه و و چی دهندتر لاسه کولو دپاره ئی هڅی او کوښښونه در لودل ، چی بالاخره انگلستان په فرانسه باندي بري وموند .

دبر تانوي استعمارگرو تاریخ په هند کی په دوو مرحلو او عصر و نو باندي و یشل کیږي .

لو مړی پخوانی عصر - دو یم - نوي عصر

د پخوانی عصر تاریخی دوره په درو برخو ویشل کیږي

الف : لو مړی دوره ( د ۱۷۰۷ م کال نه تر ۱۷۳۸ م کال پوري ) چی په دي وخت مرهتیان په هند کی بر تری ترلاسه کوي .

ب : دو یمه دوره ( د ۱۷۳۸ م کال نه تر ۱۷۷۲ م کال پوري ) چی د دوي تیا کلی پر مختگونه په نصیب شول او بر تانیې په خپل

---

(۸۳) افغانستان درمسیر تاریخ ، ص ۳۱۶-۳۲۷

حریف فرانسی باندي بري ترلاسه کړه په بنگال اوسند را س کی ئی د سالکیت حق بیاموندہ او ریاستو نه یی تشکیل شول.

ج . دریمه دوره ( د ۱۷۷۲ م کال نه تر ۱۸۱۸ م کال پوري) چی بر تانیه مرهټیانو باندي بریالی شوه او د فرانسی طرحی هم نا کامی شوي او بالاخره هندر اس انگلیسانو ته وسپارل شو (۸۵).

نوي عصر چی د هند په تاریخ کی د ۱۸۱۸ م کال د بر تانیی حکومت په تاسیس سره پیل شو دا عصر هم په دروبرخو ویشل کیږي .

الف : لومړی دوره ( د ۱۸۱۸ م کال نه تر ۱۸۵۸ م کال پوري ) چی په دي دوره کی د بر تانی تسلط او اداري سیستم قایم شو .

ب : دو یمه دوره ( د ۱۸۵۸ م کال نه تر ۱۹۱۹ م کال پوري ) په دي دوره کی د بر تانیی رول د هند د ملی نهضتو نو د سیاسی، اجتماعی او مذهبی ریفورمو نو په سا حو کی څرگند شو .

ج : دریمه دوره ( د ۱۹۱۹ م کال نه تر ۱۹۴۷ م کال پوري) چی با په دي دوره کی د ملی حکومتو نو طرز ، د آزادي په شکل سره ښکاره شو . (۸۶)

په هند کی د بر تانوي استعمار چیانو تاریخ یو څپاندتاریخ دي چی لو مړی ئی په ۱۷۶۳ م کال د بنگال و لایت لا ندي کړا و د دهلی

---

(۸۵) Macmillan, A short History of the Indian people, Calcotta, 1969, P. 245.

(۸۶) پورتنی اثر ، ۳۱۵ - ۳۱۶ مخونه.

خو اته یې خپل تدریجي تیري ته دوام ورکړه. برتانوي یرغلګرو چې د هند نیولو د پاره ئې وسیع پلانونه درلودل د شمالي هند زیاتې سیمې یې یو پر بل پسې لاندې کړې په لومړي وخت کې یې د مغلو د امپراتورۍ د تجزیې او تو کېدو څخه کولو د پاره محلي فیوډالي حکومتونه تشویق کړل او د هند په بیلابیلو سیمو کې کوچنې فیوډالي حکومتونه منځ ته راغلل چې ورسته بیا د دوی ترمنځ فیوډالي شخړو ته لمن وو هل شوه او په اخیر کې برتانوي استعمار ګرانو د دوی په ماتولو پیل وکړ.

په دې وخت کې د افغانستان پاچا شاه زمان هم غوښتل چې د دراني امپراتوري حدود یو وار بیا تجدید کړي او په عین وخت کې د هند د مسلمانانو چې د برتانوي استعمارګرانو نه په تنګ شوي او د ته په وار وار سره هند ته بلنه ورکړي وه ترڅو چې د هند خلک د استعمار ګرانو په لاس تللو کې کومک وکړي.

په ۱۷۹۸ م کال شاه زمان په لاهور کې د هلې نیولو د پاره تیاري نیولو چې انګلیسانو د شاه زمان د پلانونو شنډولو د پاره د خپل سفیر کپتان جان ملکتم (John Malcotm) ایران ته واستاوه. لومړی ئې ایران د خراسان* نیولو ته تشویق کړ او ایرانیانو په خراسان تیري وکړ چې په نتیجه کې شاه زمان مجبور شو چې د پېښور او کندهار له لارې څخان هرات ته ورسوي

---

* ټول خراسان په دې وخت کې د افغانستان د خاورې جز ګڼل کیده.

په دې توګه د شاه زمان پلان د خنډونو سره مخامخ شو. او روسته بیا په ۱۸۰۱ م کال د جنورۍ په ۱۰ نیټه د برتانیې او ایران ترمنځ تړون لاسلیک شو چې په تړون کې د ایران پاچا تعهد کړی و چې که چېرې د افغانستان پاچا په برتانوي هندباندې یرغل وکړي ایراني لښکر به د افغانستان په خاوره تېری وکړي او یا که د افغانستان پاچا یا فرانسه په ایران حمله وکړي د برتانیې دولت به خپل پوځونه د ایران کومک ته ولیږي. (۸۷).

کمپنۍ چې اوس یې په یوه پراخه سیمه باندې تسلط درلود د هندوستان د ختیځو او جنوبي سیمو په لاندې کولو یې پیل وکړ او تقریباً د هند لاندې کولو د پاره هم د فرانسې، پرتګال او انګلیسانو ترمنځ مبارزه ختمه شوې وه او برتانوي استعمارچیانو خپل ځانونه د هند مالکان ګڼل او د مرهټیانو سره په جګړه کې و. د هند په جنوب کې ټیپو سلطان څخه هم انګلیسان راچاپېره شوي او همدارنګه په اوده، ډهلي او ځینو نورو سیمو باندې د انګلیسانو له خوا زور راچول شوی و.

د افغانستان پاچاشاه زمان لس واري د هندوستان په نیت روان شو خو په دا ټول وخت کې د لاهور نه هغه خوا ته تېر نه شو او ده ته به په داخل کې د نورو په تحریک د خپلو ورونو له خوا ګډوډي او جنجالونه پیدا کېدل. (۸۸)

---

(۸۷) عبدالحی حبیبی، تاریخ مختصر افغانستان، کابل، ۱۳۴۹، جلد دوم، ۱۰۳ مخ.

(۸۸) قاضي عطاءالله خان، د پښتنو تاریخ، لومړی جلد، ۱۵۰ مخ.

سند د درانیانو د امپراتوري په وخت کی د افغانستان یو آباد او سرسبزه ولایت و چی بحرته ئی ازاده لارد رلوده ، انگلیسانو د تلسمی پیړی راپه دیخوا هیله درلوده چی په دی سیمه کی نفوذ ولري او دسوداگري لاري پرانیځی چی د همدي ارزو درلودلو په نتیجه کی انگلیسا نو وکړاي شول چی د احمدشاه بابا په وخت په ۱۷۵۸ م کال کی دسندو الی غلام شاه په واسطه خو تجارتی خونی په تته او شاه بندر کی افتتاح کړي، خو وروسته د تجارو د کړ کی او د افغانستان پاچاشاه زمان نفوذ په واسطه دوي مجبور شول چی سند پریږدي (۸۹)

د نولسمی پیړی په لومړی لسیزه کی کمپنی یو واری بیا دنا پلیون څخه په ډار کی ولویده او په ۱۸۰۸ م کال د جولاي په میاشت کی کپتان دیو - یدستون- Davied Seton - دسندسر کز حیدر آباد ته ولیږل شو او د تالپور میرسیرغلام علی سره یی یو دوستانه تړون لاسلیک کړ سگرداچی دبر تانوي استعمار چیانو گټوددي تړون دمواد وسره تکر کاوه د همدی کال دا کتوبر په میاشت کی لار دمنتو( 1807-1813 Lord Minto د کپتان دیو یدستون ماموریت لغوه

کړاو څه وخت وروسته دگورنر جنرال په تقاضا نیکو لاس هینکی - سمت دسندمیر انو ته ورغی په نتیجه گی یو ځل بیاد سندمیر انو غلام - علی، میر کرم علی او میر مرادعلی سره د دوستی تړون د ۱۸۰۹ م کال داگست په میاشت کی امضاء شو په تړون کی دسندمیر انو تعهد

---

(۸۹) ، افغانستان در مسیر تاریخ ، ص ۴۲۷.

کړي وچې فرانسوي اتباعو ته بهاجازه نه ورکول کیږي چې په سند کې ځای پر ځای شي . (۹۰)

کله چې برتانیې دسند پهاو پدو کې دخپل نفوذ پهلټه کې وه د افغانستان په دننه کې ددرانی احمدشاه بابا دلمسیانو تر منځ سختی خپل منځي شخړي دقدرت تر لاسه کو لو دپاره روانې وي ، په دي وخت کې انګلیسی تیري کوونکو قو او هندوستان ترلو دیانې پوري لاندي کړاو یو لو مړنې سیاسي هیئت ئې دالفنستن (Elphinstone) په مشري پیښور ته دشاه شجاع حضور ته راو لیږه او شاه شجاع یې په ایران کې دفرانسې زیاتیدونکي نفوذ ته متوجه کړاو په نتیجه کې دشاه شجاع او الفنستن تر منځ یو دفاعی تړون د ۱۸۰۹ م کال د مارچ په میاشت کې لاسلیک شو او د همدي کال د جون د میاشتي په ۱۷ نیټه لارډ منتو دبرتانوي هندګورنرجنرال هم تصدیق کړ . (۹۱)

په دي موقع چې برتانوي استعمار چیانو دخپلو سرباز انو په واسطه دهندا کثره سیمې فتح کړي ، پنجاب دسکدو لت هم دیوه ژ ندار مقوت په توګه د هند په شمال کې منځ ته راغی او دفتو حاتو په نتیجه کې دغه دوه دولتونو د سرحدونو لې یو بل ته سر ه نږدې کړې ، نوکړ د ځنوي په خاطر د ۱۸۰۹ م کال داپریل د میاشتې په ۲۵ نیټه برتانیې او مهاراجه رنجیت سنګ (Ranjit Singh) تر منځ تړون لاسلیک شو په

---

(۹۰)، افغانستان و هند بر تانوي ، ص ۳۷-۳۸ .

(۹۱) ، تاریخ مختصر افغانستان ، جلد دوم ، ص ۹۶ ، ۱۰۶ .

ترون کی ..هار اجه رنجیت سنگ ته اجازه ورکړ شوي وه چی انگلیسان د غرب لوري ته دده په پراختیا غوښتنو کی مداخله نه کوي.

دبرتانوي نماینده گانو دهمدغه تشوبق په نتیجه کی رنجیت سنگ دافغانستان نه دسیمو شکولو په لړ کی لومړی کشمیر او بیا دسند په اوږدو کی نوری سیمی یو پر بل پسی دافغانستان څخه ونیولی (۹۲).

کله چی شاه محمود په ۱۸۰۹ م کال کی یو ځل بیا په تخت کښیناست دهغه وزیر بار کزوی فتح خان یو ځل بیا دافغانستان پخوانی برم راژوندی کړ دبلو چستان او سند میر انې چی دافغانستان دداخلی گډوډیو په وخت کی په خپل سر شوي و وبیرته تابع کړل همدا رنگه رنجیت سنگ ته چی څه موده مخه داتک کلا نیولی وه دفتح خان له خوا په ۱۸۱۳ م کال کی سخت گوزار ورکړل شو او کشمیر محمد عظیم خان ددهٔ وروړته وسپارل شو، (۹۳)

دا چی برتانوي استعمارگر و دخپلو گټو دپاره دهیڅ ډول دسیسه کولو څخه مخ نه اړوه دهٔ ۱۸۱ م کال دنو مبر دمیاشتی په ۲۵ نیټه یې دافغانستان پر خلاف دایران سره تړون لاسلیک

---

(۹۲) افغانستان وهند برتانوي، ص ۳۹

(۹۳)، تاریخ مختصر افغانستان، جلد دوم، ۱۰۶ مخ

کړ ـ دتړون دسواد وخخه په یوساده کی په یوطرفه ډول ویل شوي و چی که چیري دافغانستان او ایران ترمنځ جنګ واقع شي برتانیه سـدا خله نه کوي ولی ایران تعهد کوي چی که چیري افغانستان دبرتانیې سره په جګړه کی شي ایران به په افغانستان باندي یرغل کوي (۹۴)

په ۱۸۲۰ م کال کی برتانوي استعمار چیانو یو ځل بیا دافغانستان ددا خلی ګډوډیو نه په استفادي سره سندته خپل نماینده الفنسټن ولیږ ه او دهمدي کال دنوسبر په میاشت کی دسند سیرانو او دبرتانیې نماینده ترمنځ یو دوستانه تړون لاسلیک شو . دتړون دمو اد و پر اساس هیڅ اروپایی هیوادته اجازه نه و رکول کیده چی سندته راشي . (۹۵)

هغه تړونونه چی دبرتانیې او دافغانستان سره په پرتو پولو او هیو ادوتر منځ دافغانستان پر خلاف لاسلیک شول بالاخره دغه تړونونو په ۱۸۳۰ م کال کی دافغانانو او انګلیس اړیکی دتاثیر لاندي راوستلی . ((۹۶) نو ځکه چی برتانیې اخپل موقف په ایران کی له لاسه ورکړي و ، دوي خپل زیات نماینده ګان تزاري روس د احتمالی یـرغل دامکاناتو

---

(۹۴) افغانستان و هند برتانوي، ص ۶۱ .

(۹۵) افغانستان درمسیر تاریخ، ص ۳۲۷ .

(۹۶) افغانستان و هند برتانوي ، ص ۵۰ .

ددفع کولو په خاطر هغه سیمو ته ولیږل چې د آمو د ریاا وسند ترمنځ پر تې وې چې د هغه جملې نه کپتان کانای او الکساندر برنس افغانستان او منځنی آسیا ته ولیږل شول. هنري پوتنجر (Henry Pottinger) ( )
دسند میرانو ته ولیږل شو او د ۱۸۳۲ م کال د اپریل په میاشت کې یو دوستانه تړون د دوی ترمنځ لاسلیک شو د تړون د مواد و له مخې د سند تو لې لارې د برتانوي کشتیو پرمخ خلاصې شوې. د تړون په بدله کې لیکل شوي وچې دوار ه خواوې د یو بل متصرفاتو ته په دښمنۍ نه گوري چې د غه ماده ۱۸۳۸ کاله د ترو نور و سته په ۱۸۴۳ م کـال کې انگلسیانو په دي بهانه چې د سند میرانو د ۱۸۳۹ – ۱۸۴۲ م کلو نو دافغانانو او انگلیـس په جگړه کې پر دوي باندي لاره تړلې ده ، د سند میران یې د آزادي۔ څخه محروم او سند مستقیماً بر تانوي استعمار چیانو لاندي کړ.
( ۹۷ )

په ۱۸۳۳ م کال کې بر تانیې او د پنجاب حکومت شاه شجاع دافغانستان نیولو ته تشویق . کړ او ددوي په مالي مرسته دا یرغل تر سره شو. خوشا شجاع په خپل مقصد کې ناکام شو او د تشویق کوونکو هیلې هم د خاو رو سره یو ځاي شوي .( ۹۸ )

---

( ۹۷ ) ، افغانستان در مسیرتاریخ، ۲۷۳م مخ همدارنگه ، افغانستان و هند بر تانوي، ۷۸ – ۸۱ مخونه .

( ۹۸ ) اولس یاره انگریزي استعمار او افغانستان ، ۷۳ مخ.

د هند ختیځه کمپنی او س یوه تجارتی کمپنی نه وه بلکې او س تقر یباً ټول هندوستان دبر تانوي سر با ز انو په واسطه فتح شو .
کمپنی هم په یوه سیاسی ارګان سره بدله شوه همدا رنګه د دوي ذهنونه هم د کمپنی په بر خه کی واوښتل په ۱۸۱۳ م کال کی د کمپنی په خر نګوالی کی تجدید نظر وشو تجارتی انحصارات له منځه یوړل شول او دبر تانیی پاچاهی حکومت دهغه ځای ونیو .

د ۱۸۳۳ م کال دقانون له مخی هند وستان د یوه بر تانوي پاچاهی په توګه اداره شو او دسو داګري په برخه کی علاقه کمه شوه . ګورنر جنرال او دهغه شورا اجازه د رلوده چی د هند خلکو ته قوانین جوړ کړي . په ۱۸۳۵ م کال کی شمالغربی ولایت د بنګال څخه جلا شو او دهغه د باره نایب الحکومه مقرر شو . ( ۹۹ )

[ په ۱۸۳۶ م کال کی امیر دوست محمد خان د بر تانوي هند ګورنر جنرال لارد اکلندته یو لیک واستاوه چی په هغه کی یی لوسړي دده په نوي وظیفه باندي تـا کلو تـه مبارکـی ویلـی وه و روسته یاددونه دسکانوڅخه دپیښو ردر اګرځولو په برخه کی مشوره غوښتـی وه . اکلـند دا سیر دلیـک پـه ځـواب کـی

Macmillan, Ashort History of the Indian ( ۹۹ )
p. 316. people,

داسې ليکلي و « په هند کې د انګلسيانو مقصد د سوداګرۍ پرمختګ دی . برتانيه دنورو هيوادو په کورنيو چارو کې مداخله نه کوي ، مګر دسوداګرۍ د چارو دتنظيم د پاره به يو انګليسي هيئت کابل ته ورشي . ( ۱۰۰ )

د ۱۸۳۷ م کال د سپتمبر دمياشتې په اخيرو ورځو کې انګليسي هيئت د الکساندر برنس په مشرۍ کابل ته راورسيد او دامير سره يې خبرې پيل کړې . څه وخت وروسته دتزاري روسيې نماينده ويتکيو يچ ( Vitckovitch ) کابل ته راغی . ويتکيو يچ دکابل دربار او کندهار حکمرانان په سند او پنجاب کې د انګليس پرمختګ پر خلاف تحريکول . دامير او برنس ترمنځ زياتې خبرې وشوې ، خو د امير غوښتنې مشخصې وې هغه داچې «که چيرې دانګليس دولت موږ ته د ورزوتو پکګ راکوي همدارنګه هغه ځمکې چې د سند درياب په غرب کې پرتې دي بيرته راګرځوي په هغه صورت کې به دي دانګليس دوست او همکاروي» . ( ۱۰۱ )

خوښنګه چې برتانوي هندخپل پخواني متحدسدوزي شاه شجاع

---

(۱۰۰) Gregorain, the Emergence of madern Afghanistan, P. 67

(۱۰۱) انګلستان دافغانستان پر ضد ، ۱٦ – ۷ مخونه

په نظر کې د ر لو ده او په لو د یانه کې دداسې وقع د پارساتل شوي
و نو د بر تس خبري بې نتیجې و بلل شوي او ۱۸۳۸ م کال دا کتوبر
د سیاشتې په لو سړی نېټه د بر تانوي هندگو رنر جنرال لار دا کلند د
جنگ اعلامیه دافغانستان پر خلاف نشر ته وسپارله او دامیر دوست
محمدخان د راپرزولو د پاره یې سلاو نړله.(۱۰۲)

## ب . په افغانستان کې دانگلیسانو د جاسوسي هلې ځلې:

د نولسمې پېړې په لومړیو کلونو کې کوم وخت چې په هند
باندې د ناپلیون د یرغل ډار زیات شو څه په رسمي او څه په غیر رسمي
توگه زیات انگلیسي اجنټان افغانستان ته راغلل ددوي مقصد دي
سفر و نو څخه دا و چې دافغانستان په اقتصادي، توپوگرافي، جغرا ـ
فیایي، سیاسي او تاریخي برخو کې معلومات تر لاسه کړي .

لومړی رسمي انگلیسي هیئت چې د ناپلیون داقداماتو د نا کامولو
د پاره افغانستان ته راغی دالفنستن هیئت و چې په ۹-۱۸۰۸ م کال
کې یې دافغانستان پاچاشاه شجاع سره یو د فاعي تړون لاسلیک کړ.
(۱۰۳)

دالفنستن سفر انگلیسانو ته ددې امکانات برابر کړل څو دافغا ـ
نستان باندیني او دننی لار ې، دهیواد سیاسي او اجتماعي قواو تناسب

---

(۱۰۲)او لس یار ، انگریزی استعمار او افغانستان ، ۹٦ مخ

(۱۰۳) Gregorian, Emegence of Modern Afghanistan, p. 67.

او دپر ديو په‌مقابل کی‌د هغوي‌دتابر او رلو امکانات په‌غور سره وخیړي . (۱۰۴)

د الفنستن‌دهیئت وروسته لو سړی کپتان چارلس کر یستی (Capt. Charles christi )او بیاوروسته په ۱۸۱۰م کال کی یو بل‌انګلیس‌چی‌هنری پو تنجر ( pottinger )

نو میده‌دجاسوسی دپاره لو سړی‌بلوچستان‌او وروسته‌دافغانستان نو روسیمو ته ولاړل او تر زیات وخت پوري‌ئی دقبایلوتر منځ د.محلی‌لباس‌بیا کله‌دملاّاو یاد پیر په‌څیره‌دیوه کلی‌نه‌بل کلی‌ته تلل او حتی‌ان‌تر ایران‌پوري په‌پښو وګرځیدل.(۱۰۵)

په ۱۸۱۲ م کال کی‌لو سړی‌دوري( Durie )او‌څه‌وخت وروسته‌عزت‌الله( Ezzetulla )دجاسوسی‌دپاره‌افغانستان ته راغلل‌او خپلو جاسوسی‌ادارو ته‌یی‌پوره معلومات تر لاسه کړل.

په‌۱۸۱۹م کال کی دوه نور وانګلیسی اتباعو‌مور کرافت ( Moor Craft )او‌تریبک( Trebeck )

دافغانستان‌څخه‌لیدنه وکړه‌او‌تقریباًشپږ کاله‌دافغانستان‌په‌مختلفوسیمو کي کلی‌په کلی‌وګرځیدل‌او‌په‌اخیر کی‌مور کرافت‌دهندوکش‌په‌شمالی لحو کی‌مړشواو ددغودو وتنوو روسته ګوتري( Guthrie)

افغانستان‌ته راغی‌او په همدی وختو نو کی‌چی‌انګلیسی‌اجنټانو یو

---

(۱۰۴) انګلستان دافغانستان پر ضد، ۱۶-۱۷ مخونه .

(۱۰۵)اولس‌بیار ،انګریزی‌استعمار او افغانستان، ۹۶ مخ .

پر بل پسی دافغانستان څخه لیدنه کوله په ۱۸۲۳ م کال کی دمونټ سټو رټ الفنسټن کتاب چی دافغانستا ن په مختلفو بر خو کی ئی غنی مو اد درلو دل نشر شو .

په ۱۸۲۶ م کال کی یو بل سکاټلندي اد و ار د ستر لسنګه ( Edward Stirling )د بنګال دمنکی چار و ماسو ر کابل ته راغی . (۱۰۶)

په ۱۸۲۷ م کال کی چار لس میسن ( Charles Masson ) او یو کال و ر و سته جیمز فر یز ر ( James froser ) په ۱۸۲۹ م کال کی ډا کټر ها ر لان امر یکائی (د هند د ختیځی کمپنی په ارتباط یو پر بل پسی د جاسو سی د پا ر ه افغانستان ته راغلل (۱۰۷)

د ۱۸۳۰ م کال و ر و سته منځنی اسیاته د نړیو ال کړ کیچو نو په نتیجه کی د استعمار ي هیو ادو تو جه ز یا ته شو ، او یو تعداد ز یات انګلیسی اجنټان دي سیمی ته ر او لیږ ل شو ل تر څو دسیمی دو ر ځنی انکشاف څخه لو سړی بر تانو ي هنداو بیاو ر و سته لندن خبر کا ندي د هغه جملی نه الکساند ر بر نس ( Barnes )او کپتان کانو لی ( Cannally ) افغانستان او منځنی اسیاته سفر و کړ ، بر نس دامیر دو ست محمد خان سر ه له نږدي و لیدل او دنو اب جبا ر

---

(۱۰۶) Arthur Swinson, North-West Frontier, p. 35.

(۱۰۷) او لس یا ر ، انګر یزي استعمار او افغانستان ۸–۱۰۶ مخونه

خانسره ئی ډیری شپی تیری کړي، بیاد آمو وادي له لاری لوسړی
بخارا او دهغه څخه ځاي نه مشهد، تهران او خلیج فارس له لاری هندته
ستون شو (۱۰۸) برنس ډیر ژر دکلکتي نه انګلیستان ته ولیږل شو
تر څو دجاسوسی راتول کړي معلومات دلندن واکمنو ته وړاندی
کړي. برنس په ۱۸۳۳ م کال کی لندن ته ورسیداو ډیر ژر د ده دسفر
دوي توکیز ه شرح خپره شوه او دشاه جغرافیایی تولنی له خوا په طلایی
مډال مفتخر شو او دانګلستان پاچا څلورم ویلیام ده ته دیو نیم
ساعت مجلس افتخار ورو بابښه . (۱۰۹)
له برنس نه ورو سته هنری ډیورنډ (Sir Henry Durand)
جیمز جیرارد ( James Gerard )، مونشی موهن لال
( Munshi mohanlal )سنګوین( Sangain )او دمود ایور
( Maud Diver )په خپل وار سره دافغانستان څخه کتنی و کړی او
په دیرو ، حجر و او جوما تونو کی ئی شپی سبا کړلی . و یسلی
( Wisely )بیا دمسلمان ملا په ډول افغانستان ته راغی او دمختلفو
قومونو، قبا یلو او کورنیو په خو ي او بوي ئی ځان بلد کړاو دسختو شر ایطو
سره یی دخپلو مقصدونو دلاس ته راوړولود پاره توافق وکړ او خپلو باداړانو
ته یی دافغانی تولنی په برخه کی په زړه پوري سواد برابر کړل(۱۱۰)

---

(۱۰۸)، افغانستان و هندبر تانوی، ص ۸۷ او هم ۱۰ ارنګه

North -West frontier P. 35

(۱۰۹)انګلستان دافغانستان پر ضد دتاریخ پانی، ۳۲ مخ .

Arthur Swinson, North West frontier, p. 35. (۱۱۰)

په ۱۸۳۷ م کال کې الکساندر برنس یو ځل بیا د سوداګرۍ

د چارو په رول کې افغانستان ته راغی. په دې سفر کې ده سره لفتننت

لیچ ( Lievtenant Lech )لفتننت جان وډ ( John wood

ډاکتر پرسیوال ( Dr. Percival )اي ایم ایس، او نورسره وو

چې له دې جملې نه لیچ کندهار ته وليږل شو ترڅو چې د کندهار حکمر-

انان د ایران تمایل څخه واړوي. جان وډ او ډاکتر پرسیوال لارد

کندز و ته ولاړ او الکساندر برنس کابل ته ورغی او دامیر دوست-

محمدخان سره ئې په خبرو پیل وکړه (۱۱۱)

برنس دیوې او ږدې مودې په ترڅ کې خپلو جاسوسی ادارو ته د

کابل څخه پوره مواد تیار کړل. ولی د برنس خبرې د ناکامۍ سره

مخامخ شوې چې ددې سره روسته د انګلیس سیاست د افغانستان

په برخه کې بدل شو او د دوارو هیوادو ترمنځ مناسبات خراب شول

چې وروسته بیا امیر دوست محمدخان هغه وخت زار ی روس ته مخه

کړه چې د انګلیس د کومک نه څخه نا امیدشو .(۱۱۲)

سند چې دانګلیسانو دپاره یو مهم زړه پورې سیمه وه. د ۱۸۲۸ م

کال نه راپدیخوا سند په دریاب کې د بیړۍ چلوولو په غرض یو

زیات تعداد انګلیسي اجنټان او سیاسي مامورین دسند میرانو او د پنجاب

حاکم رنجیت سنګ ته ورغلل ترڅو چې په دې توګه په سیمه کې خپل

---

(۱۱۱) دمیلسون ، تاریخ افغانستان، ۳۳۵ مخ

۱۱۲

Gregorian the Emergence of Modrn Afghanistan, p. 68.

(۱۱۳) افغانستان د رسمي تاریخ ، ۳۲۷–۳۲۸

نفو ذ پیاو ري کانديا و د همدغه مقصد د حاصلو لو د پاره په ۱۸۰۸ م
کال د یو يدستو ن او په ۱۸۰۹ م کال مستر هینکي سمت، په ۱۸۲۰
میلادی کال کي الفنستین په ۱۸۳۲ م کال کی هنر ی پو تنجر او
شپیر کاله و ر و سته په ۱۸۳۸ م کال کی بیا دو یم ځل د پار هنر ي
پو تنجر د سند څخه لیدنه و کړه. څه و خت ور وسته په همدي کال کی
الکساند ر بر نس په ۱۸۳۹ م کال کی سر فیر یدر یك مت لنداو و یلنت
یو پر بل پسی سند ته سفر و کړ.(۱۱۳)

هر ات د افغا نستان دخاو ر ي نه بیلیدو نکی جز دي ا و په مو قتی
تو گه د سد وز یو او محمد زیو دداخلی قبیلو ي شخړ و په وخت کی
سدوز ي کاسر ان په هر ات کی حکو مت د ر لو د خو څنگه چی هر ات
ز یات ستر اتیژ یك اهمیت درلو د او د هند کلی شمیر ل کید ه نو ځکه
انگلیسانو و ر ته ز یاته تو جه درلو ده ا و په لسگو نو بر تانو ي
اجنټان او گرځند و يان له د غه ځاي څخه ایر ان ته او یا برعکس له
هغه ځایه هرات او بالاخره بر تانو ي هند ته تیر یدل. په ۱۸۳۸ م کال
کی د هرات وضعه د ایرانیانو د یر غلو نو په واسطه خرابه شو ه، چی د یر
ژر بر تانو ي نما ینده گان د خپلو گټو ددفاع په خاطر خو ك د سیاست
په نو م او یا ځنی د مسلمان ملا په جامو کی دافغانانو ترڅنگ د
ایرانی یر غلگرو په مخکی په کلکه ودریدل چی د هغه جملی نه جان کور ت
John Court ) ایلدرید پوتنجر -Eldred pottinger—

(۱۱۳) میرغلام محمدغبار افغانستان د رسیر تا ر یخ، ص ۳۲۷-۳۲۸

(دهنري پوتخبر ورا ره) لفتننت ابرون Lieutenant Irwin -
مجر تاد - Majortodd. -(يا دولي شو .(۱۱۴)
دغه پورته ذكر شوي اجنتان عموماً د هند
د ختيځې كمپنۍ له خوا افغانستان ته را ليږل كيدل . هغه
معلومات چې ددوي پهواسطه توليدي دانگليس رسمي ماموړينو له خوا به
تحليل او تفسيربده او دهغه و روسته به دور ځنۍ پاليسي او ضرورت له مخې
نتيجه گيري او دخاصي موضوع په برخه كي به تصميم نيول كيده .
دنو لسمي پيړۍ په پيل كي مسيحي مبلغينو كوښښ وكړچې په افغا-
نستان كي د تكيې يوخو نديځاي ولري د همدي مقصد د پاره ډاكتر
ليدن (Dr. Leyden) د كلكتې په فورټ ويليم كالج كي د انجيل
ترجمه په پښتو باندي پيل كړه او په ۱۸۱۸ م كال كي زر جلده ترجمه
شوي كتابونه په ازمايښتي توگه د تبليغ د پاره تيار شول چې د هغې
جملې نه څو جلده د هندله لاري دلوهاني سوداگرو په ذريعه افغا-
نستان ته راو رسيدل. خو دېر تانوي استعمار چيانو دي كار سره چا
علاقه و نه ښودله او د هغې زيات كتابونه په مخزنونو كي پاتې شول.
په ۳۷ - ۱۸۳۸ م كال كي جوسيف وولف( Joseph wolff
عيسوي مبلغ پيښور ، كابل او بخارا څخه مفصله ليدنه وكړه او د
ديني بوهي په برخه كي ئې د عيسويت په گټه زيات بحثونه د مسلمانانو
ملايانو سره ترسره شول خو دي تولو تشويقونو په نتيجه كي
تانوي اجنټان د نا كامي سره مخامخ شول.(۱۱۵)

---

۱۱۴) Gregorian, the Emergence of Modern Afghanistan, P. 68.
(۱۱۵) پورتني اثر، ۸۴-۹۴ مخونه .

# پنځم فصل

## الف -- پر افغانستان د انګیسانو لومړی یرغل:

د ۱۸۳۸ م کال د اکتوبر د میاشتې په لومړۍ نېټه د سملې د جنګ اعلامیه د برتانوي هند ګورنر جنرال لارډ اکلینډ (Lard Auckland) (۱۸۴۲-۳۶ م) له خوا د افغانستان پر خلاف نشر شوه او تقریباً دوه میاشتې وروسته د نومبر د میاشتې په ۲۷ نېټه لارډ اکلینډ فیروزپور د پنجاب لاهور ته نږدې یوه کوچنۍ ښار ته راورسېده او د رنجیت سنګ له خوا یې په پرتمینو مراسمو هرکلی وشو. د دې راتګ څخه مقصد دا و چې مخکې له دې چې په افغا-نستان باندې تیری وکړي د پنجاب حاکم همکاري ترلاسه کړي او په عین موقع کې خپلې قواوې تجدید کاندي. د غه کتنې د عجیبو لوبو په توګه د برتانوي هند د ټولو قواو قوماندان سر هنري فېن (Sir Henry Fan) په یو لوی مانور ونو سره د همدې کال د نومبر د میاشتې په ۳۰ نېټه پای ته ورسېدې. څو ورځې وروسته د دسمبر

دسیاشتی په لسمه نیټه انګلیسی پوځونه دسندله لاري افغانستان خواته
را ما رش شول .(۱۱۶)

د هندد بر تانوي قو او لښکري چې په فیر وز پور کی په افغانستان
باندي د تیري د پاره راټولی شوي و ي ـ سکناټن( Macnayhten
او برنس( Burnes )یی دسیاسی نماینده ګانو په توګه ټاکل شوي
و و ترڅو د سـوقـیاتو رهبري پـه غاړه و اخلی.

څنګه چې بر تانوي نماینده ګانو د رنجیت سنګ سره د پنجاب له
لاري دافغانستان لو رته دقو او تیر یدلو دو افقه نه وه تر لا سه کړي
نو فیصله و شوه چې دبهاولپور ، شکارپور ، بولان غاښی، کوټی او
چمن له لاري لوېږی کند هار او بیا و رو سته کابل دافغانستان
مر کز ته داخل شی.(۱۱۷)د اندوس پوځونه چې په افغانستان باندي
دتجاو زاو بارکزوورونو دتېکولو او راپرزولو د پاره تیار
شوي و و پنځه بېلابیلی برخی درلو دلی په دي توګه :

۱ ـ دسند پوځ چې دبنګال نه راغلی و او دمیجر جنرا لسر ولو بی
کاټن Major General Sir Willoughbycotton
دقوماندي لاندي و ۹۵۰۰ تنه .

۲ـ دمیجر جنرال ډنکن( Major General Dancan ) خاصه
فرقه ۵۲۰۰ تنه .

---

(۱۱۶) Arthur Swinson, North west frontier, p. 26, 32.

(۱۱۷) افغانستان و هندبرتانوي ، ص۱۱۹.

۳ـ دشاه‌شجاع شخصي استخدام کړي‌شوي پوځ ۶۰۰۰ تنه
۴ـ دبمبئي پوځ دلفتننت‌جنرال سرجان کين (

Lieutean General Sir John keen ) قوماندي
لاندي ۵۶۰۰ تنه .

۵ـ دسنديادبمبئي خاصه‌قوا ۳۰۰۰ تنه. دغو پنځو واړه‌قواو
۲۸۳۵۰ تنه جنګيالي درلودل .

برتانوي پرغلګر ځواک له‌دي‌چي‌افغانستان‌ته‌داخل‌شي، لارد
اکلينددبرتانوي هندګورنرجنرال‌خپل‌نماينده‌ګان‌د سندد
خير پور ،حيدر اباد او بهاو لپور سرانو ته‌وليږل
چي‌دهغوي‌څخه‌دپوځونو دتير يدو اجازه و اخلي‌ځکه دسند لا
چي‌دهغه‌څخه‌پر افغانستان‌باندي تجاوز کيده ددغه‌دري‌سرانو
سيمو څخه‌تير يده . (۱۱۸)

انګليسي‌پوځونه‌چي‌پر افغانستان باندي دتيري دپاره‌تيار شو
و ود ۱۸۳۸ م کال ددسمبردمياشتي په ۱۰ نيټه‌لومړ ي‌دبنګال
پوځ دسرولوبي‌کاټن دقوماندي لاندي دفيروزپورڅخه راروان
شو او دسکر په‌مقام دسندد رياب‌څخه راپوريوتل. وروسته‌بياد
بمبئي‌لښکري‌راورسيدي او د ۱۸۳۹ م کال دفبروري‌مياشتي
په ۹ نيټه‌دغه‌ټول پوځونه په‌شکارپور کي‌سره يوځاي‌شول
او دشاه‌شجاع له‌خوا معاينه‌شول، دمارچ په ۱۶ نيټه دکاټن پوځ

---

(۱۱۸) قاضي عطاالله ،دپښتنو تاريخ ،دويم جلد ۲۶ مخ .

دکوټي په لاره کي د بولان دري ته ور اورسيد او په لاره کي د کوم خنډسره مخامخ نه شو. خو دوا ښود کمي او نشتوالي په صورت کي يي زيات مالي او حيواني تلفات ور کړل. د مارچ په ۲۶ نيټه کوټي ته راورسيده. (۱۱۹)

تجاوزکرنه يوازي په دغه شمير چي پورته يي يادونه وشوه افغانستان ته د تيري په غرض را مارش شول بلکي ددغه منظمو يرغلگرو جنگيالو تر څنگ تر شاګن شمير کار کنان، کوچني سوداګر محتکرين، سودخواران، لوټماران، جلاذان او داسي نور هم را روان وو چي شمير يي ۳۸ زره تنوته رسيده ددوي خخه څوک پلي، څوک په اسونو، او ښانو، خرو، غاترو او حتي پيلانو سپاره وو چي عمومأ دخپل مسير په اوږدو کي به يي د سلخو دسيل په شان سيمي سپيري او تالا کولي.

برتانوي سياسي او نظامي رهبرانو سره ددي چي د افغانستان په برخه يي کي يي پوره معلومات درلودل او په وار وار سره دوي اجنټانو د افغانستان د مختلفو سيمو څخه ليدنه کړي وه او حتي د افغانستان په برخه کي ئي کتابونه تاليف او نشر کړي وو، خو بيا هم دوي يوه ډله نور پټ جاسوسان هم مخکي له دي چي افغانستان ته داخل شي د افغانستان پيلا بيلو سيمو ته راوليږل تر څو د شاه شجاع او برتانوي استعمار چيانو په ګټه تبليغ وکړي او د هغوي د راتګ لاره هواره

---

(۱۱۹)

Arthur Swinson, North West frontier, P. 46—47.

کړي. چې د هغوي جملې نه ستر لار د تخار او بلخ ته، لفتننت سيکسن کو هاټ ته، کېرن باجوړ ته اويو تن ملي خاين د غلام خان پوپلزايي په نامه کابېسا او پروان ته، الکساندر برنس او موهن لال بلوچستان ته ولېږل شول. (۱۲۰)

په هر حال پر غلګرو پوځونو د خپل تجاوز په او پړدو کې د سند په سيرانو او د کلات په خان محراب خان باندي اسارت بار تړونونه لاسليک کړل او دوي يې په دې مجبور کړل چې مداخله کوونکو او تجاوزګرو پوځونو ته د خوراکي موادو او د حمل او نقل وسايلو په برخه کې اسانتياوې برابري کړي او همدا رنګه اورتباطات يې تأمين کړي. وايي کله چې الکساندر برنس د خبرو په ترڅ کې د کلات خان سره ياد اوري کړه چې انګليسي هندي پوځ لا د سخه په افغانستان تيري کړي دي نو د کلات خان چې يو باتجربه او پوه سړي و په حرانتيا سره يې ورته وويل: «تاسو دي هيواد ته داخل شوي دا ډير ښه ده مګر تاسي په دغه هغه څنګه راوځی». (۱۲۱)

په هر صورت د ۱۸۳۹ م کال د اپريل د مياشتې په لوسړي ورځ په کوټه کې د جنرال کاټن، جنرال کين او شاه شجاع پوځونه سره يو ځاي شول او د کندهار د بارې يې تيارۍ ونيو. کله چې امير دوست محمد خان پر افغانستان باندي دانګليسي پوځونو د

---

(۱۲۰) افغانستان در مسير تاريخ، ص ۵۲۵.

(۱۲۱) انګلستان د افغانستان پر ضدد تاريخ پاڼي، ۱۵مخ.

دغه نابره تيري ځخه خبر شوه کو ښښ يې وکړ چې تزاري روسيې ځخه دوزکړشوي وعدې کومک تر لاسه کړي خو په نتيجه کې د ده هڅو کوم ځای و نه نيو ، او په عين وخت کندل خان هم د ايران دولت ته د کومک هغه وعدې چې د دمسر دېي کړي و ي ،ور په ياد کړي ،خو ده هم څه تر لاسه نه کړل .د کندهار حاکم يوي خوا د تزاري روسيې او ايران د مرستي دناا ميدي په سبب او دبلې خوا د دښمن داجنټانو د تبليغ په وجه د دښمن سره مقابله ناممکنه وګڼله او د فراه او هرات له لاري ايران ته و لاړ .څنګه چې په کندهار کې کوم مخالفو قواو وجود نه درلود نو برتانوي اشغالګري قواوي بې له دې چې د کوم مخالفت سره مخامخ شي د مې دمياشتې په لومړيو ورځو کې کندهار ته ننوتې .(١٢٢).

په همدې وخت کې مکناټن د برتانوي هندګورنر جنرال لارد اکليند ته او هغه بيا په خپل وار لندن ته د افغانانو له خوا د شاه شجاع د تاو ده هر کلی خبر ورکړ چې دا هغه ښکر ورد دروغ وو چې څه وخت وروسته خلکو په خپلو ستر ګو وليدل چې د انګليسانو برغلګره اردو په افغانستان کې تباه شوه او د شاه شجاع مړي ډيره سوده دلار ي ترڅنګ په ويالو کې پروت و . (١٢٣)

---

(١٢٢) ، افغانستان و هندبرتانوي ، ص ١١٩ .

(١٢٣) نفتو لاخالفين، انګلستان د افغانستان پرضد د تاريخ پاڼې، ٥٢-٧٧ مخونه .

په هرحال په همدې وخت په کندهار کې د تاج ایښو د لو شاندار مراسم د ۱۸۳۹ م کال د مې د میاشتې په ۸ نېټه د یوسلو یو ډزو په ترڅ کې پر ځای شو ل او انګلیسي هندي پوځونه د شاه تر مخ تېر شول او خپل انګلیسي بیرغونه یې د تعظیم په توګه ټیټ کړل. دغه و روسته جنرال کین د انګلیس اردو سپه سالار په توګه او مکناټن د انګلیس حکومت د سفیر په توګه شاه شجاع ته د انګلیس د دولت په نماینده‌ګۍ د تبریکۍ مراتب څرګند کړل او وروسته بیا د مکناټن او شاه شجاع ترمنځ دوستانه او مفقریزه ترون لاسلیك شو. چې د دغه په موجب شاه شجاع په افغانستان کې دانګلیسي پوځونو استوګنه په دایمي ډول ومنله او دغوي دلګښت یوه برخه یې هم په خپله غاړه واخستله.
مکناټن د دغه ترون د لاسلیك کولو و روسته میجر تاډ هرات ته ولیږه تر څو چې سدوزي کامران او یار محمدخان الکوزي د کامران وزیر دانګلیس سره اتحاد ته راوبولي. مګر د ډیرو کوښښو سره سره یې بیا هم ونه شو ای کولای چې یار محمدخان په اتحاد کې شامل کړي.
نه یوازې په کندهار کې د تاج ایښو دلو مراسم پر ځای شول بلکې پېښور کې د تیمور شاه، شاه شجاع زوي او کلاد ویډ دانګلیس سیاسي نماینده له خوا یې محفل تیار شو چې په هغوي کې شهزاده تیمور شاه ته دانګلیسي او پنجابي افسرانو له خوا د تبریکۍ مراتب څرګند شول او زیاتو افسرانو او قبایلي مشرانو ته تحفې وویشل شوې. (۳۲)

(۳۲) افغانستان د رسمي تاریخ ص ۵۲۶. همدارنګه په دنو لسمه پېړۍ کې افغانستان، ۱۳۱-۱۳۲ مخونه.

## ب ـ برتانوي يرغلگران په کندهار ـ غزني او کابل کې:

برتانوي تيري کوونکي تقريباً دوه مياشتې په کندهار کې پاتې شول ـ تر څو چې د دوي نور پاتې پوځونه هم راورسيدل او په عين موقع کې ئې د کابل د پاره پوره تياري و نيو. شاه شجاع او برتانوي نماينده گانو د کندهار ملکي او نظامي چاري دا نگليس سياسي نماينده مستر ليچ ته وسپارلې او شهزاده فتح جنگ ئې هم يو ازې په نوم د کندهار والي په توگه و ټاکه ـ هممدارنگه دخپلو پوځونو يوه برخه يې د کندهار دساتلو دپاره پريښوده او دوي په خپله د ۲۸ زره عسکرو سره د تر نک له لاري کابل خواته دجون د مياشتې په ۲۷ نيته رارو ان شول او دجولاي د مياشتې په ځلورسمه نيټه د غلزيو قلات چې د کندهار نه ۸۰ ميله لري دي راورسيدل. خو کله چې د قلات خلکو د شاه شجاع تر څنگ انگليسي تيري کوونکي وليدل د خپلو مشرانو گل محمد خان، عبد الرحمن خان او سلطان محمد خان په گډون دانگليسانو پر ضد غرونو ته پورته شول. (۱۲۵)

برتانوي اشغالگر د قلات تر نيولو وروسته د غزني په لور رارو ان شول، خو په لاروکې د غلزيو يرغلونو پر دوي باندي دوام درلود چې کله نا کله به يې د دوي په قطارونو باندي حملې کولې او دوي ته به يې ځاني او مالي تاوانونه اړول. دجولاي د

---

(۱۲۵) افغانستان در مسير تاريخ، ص ۱۹ ۵ ـ ۵۲۰.

په ۸ نیټه د کین پوځونو په ډیر مشکل غزني ته چې د کندهار
څخه تقریبا ۲۰۰ میله فاصله لري ورسیدل. یوه ورځ وروسته شاه
شجاع هم په غزني کې د کین پوځونو سره یوځای شو. د دوی
وروستي ټولګي د جنرال ویلشایر ( Will—Shire ) په حکم کې
و چې یو پر بل پسې غزني ته داخل شول. او غزني د محاصرې لاندې
ونیول شو. (۱۲۶)

امیر دوست محمد خان چې تر دې وخته پورې د انګلیسانو دې ناڅا-
پي غلچکي تجاوز ته ټك و ټك ناست و او په دې چرت کې و چې څه
وکړي، ځکه امیر نه پوره پوځ درلود او نه داسې جوړ ده پوځ په ښه
وسله او تربیې سره سمبال و. برسیره پر دې امیر د هیواد په دننه د
کوهستان په سیمه کې هم مشکلات درلودل چې په همدې ورځو
کې شیر علي خان د خپلو عسکرو سره هغه سیمې ته د شورشیانو د ټکو
لو د پاره تللی و. بیا هم امیر د وخت نه په استفادې کولو سره تصمیم
ونیو چې خپل پوځونه منظم او هغه په عاجله توګه په خپلو ورو برخو
کې د دښمن مقابلې ته تیار کړي. د هغه جملې نه د یوې ډلې جنګیالو سره
ئې خپل زوی اکبر خان ختیځو پولو خیبر دریځ ته ولیږه ترڅو د
پیښور لوري د تجاوز مخه ونیسي، دویمه ډله جنګیالي یې د خپل
زوی غلام حیدر خان تر قوماندې لاندې غزني خوا ته واستول او
په عین موقع کې یې خپل بل زوی محمد افضل خان غزني او له هغه ځایه

---

۱۲۶) Arthur Swinson, North West Frontier, P. 48-49.

د پکتیا ولایت د زرملی سیمی ته ولیږه تر څو چې د هغه ځای د اولسی
لښکر په ذریعه دښمن ته په غزنی او د هغه په شاوخوا سیمو کی کلک
ګوزار ورکړي. د څلورسوو ډلی جنګیالیو په راس کی خپله امیر و چې د
مرکز د ساتلو د پاره پریښودل شول او په مرکز کی یی د دښمن د
راتګ انتظار ایوست. (۱۲۷)

د ۱۸۳۹ م کال د جولای د میاشتی په ۲۱ نیټه غزنی د برتانوي
اشغالګرو له خوا کلابند شو. غزنی په دي وخت کی د یوې مستحکمی
کلا شکل درلود او د غلام حیدر خان له خوا چې ورسره تقریباً درې
زره تنه عسکر وو ساتل کیده. د کلا په ټولو دروازو کی محکم
دیوالونه جوړ شوي وو، چې د هغه ماتول د غه ټو کلا ماتوونکو
توپونو پرته امکان نه درلود. یوازې د ښار کابلي دروازه د تګ
او راتګ د پاره په عادي توګه پاته شوې وه. کلابندي دوام درلود
ځکه په دي وخت کی انګلیسانو کلا ماتوونکی توپونه نه درلودل
او د لاري د مشکلاتو په وجه یی په کندهار کی پریښي وو. په همدي
وخت کی د غلزیو د قوم شپږ زره تنه ملي لښکر د مهتر موسی خان
زرمتي او محمد افضل خان تر قوماندي لاندي غزني ته د جولای د میاشتی

---

(۱۲۷) ، په نولسمه پیړی کی افغانستان ، ۱۳۳-۱۳۴۱
مخونه.

(*) عبدالرشید د امیر دوست محمد خان سکه خوریی او د عبدالامین
خان زوی او د انګلیسانو جیره خور و.

په ۲۱ نیټه را ورسیدل او دغزني ښار ته نږدي په ختیځ او شمالي غلجیو کې یې سنګر ونیو او په یرغلګرو باندي یې خپلې حملې پیل کړي .

سوهن لال د الکساندر برنس منشي چې لا د مخه د ۳۷-۱۸۳۸م کلونو راهسې یې د سردار عبدالرشید سره پیژندګلوي درلوده، د یوه لیک په ذریعه یې هغه د انګلیسانو سره همکاري ته تشویق کړ او ډیر ژر دغه ملي خائین د غلام حیدر خان څخه وتښتیده او د اشغالګرو سره یو ځای شو او د موهن لال په ذریعه د سر جان کین عمومي قوما-
ندان سره اشنا شو او دغزني د ښار د پوځي استحکاماتو ټول حالات او پټ رازونه ئې د دښمن په واک کې ورکړل، نو موړي د کابلي دروازي ځرنګوالی یې هم د دښمن ته ښکاره کړ (۱۲۸) د جولای د میاشتې په ۲۳ نیټه د شپې په ۳ بجو د غزني کابلي دروازه انګلیسي انجنیرانو لفټننټ دیورند (Durand) او کپتان پیټ ( peat ) د بارو تو په ذریعه والوزوله او د انګریزانو او افغانانو ترمنځ لاس په لاس جګړه پیل شوه او د یوې خونړۍ جګړې وروسته غزني فتح شو .

---

(۱۲۸) ، د پښتنو تاریخ ، دویم جلد ، ۹۰-۹۲مخو نه همدارنګه افغانستان در مسیر تاریخ ،ص ۵۳۰-۵۳۱ .

دغـزنـی پـه‌دي جگړه کـی . . ٥ تنه ځلمیا نوخپل سرونه وښندل او . . ۲ تنه ددښمن د یو ځو نو ځخه‌ بېره شول. (۱۲۹)

کله‌چی‌سباته‌سردار محمدافضل‌خان دغزنی‌په کلابانديدانگلیسانو بیرغ ولیده‌نو دخپلو سلی‌قواو وسره کابل ته راغی‌او امیر دوست محمدخان‌ته یی‌دغزنی‌دسا تیدو خبر ورکړ.امیر دغزنی دسقوط دخبر او ریدلو وروسته و رخطا شو.سردار محمدا کبرخان چی په‌دي وخت کی‌ددښمن‌ددفاع دپاره‌په ډکه کی وداسیر له‌خوا کابل ته راوغوښتل‌شواو په‌عین وخت‌کی ئی‌دسولی‌په‌خاطرنواب عبدالجبارخان‌غزنی‌ته‌ولیږه اودشاه‌شجاع دپاره‌ئی‌دتاج‌اوتخت‌پریښو دلو تیاري‌وښوده،په‌داسی شرطچی‌امیر دوست‌محمدخان‌په‌وزیري ومنی.ولی‌داچی انگلیسانو دافغانستان لاندي‌کولو پلان‌درلوده داسیر پیشنهادرد شو.بیاهم‌انگلیسانو دکورنی نفاق‌نه‌دگټی‌دپاره ددغه‌وزارت‌وعده‌نواب عبدالجبارخان‌ته‌ورکړه،خونواب‌دشاه‌شجاع‌دوزارت منلو څخه نکارو کړاو بیرته داسیر حضورته راغی. (۱۳۰)

امیر دوست‌محمد خان وروسته‌تر دي‌چی وضعیت‌یی‌بحرانی‌ولیده دهر یخوانه‌یی خپل‌زامن راوغوښتل او داگست‌میاشتی‌په‌لومړی نیټه‌دکابل‌ارغنده‌نه‌داونی‌کوتل،باسیان‌او خلم‌له‌لاري‌شمال‌خواته ته دبخارا په‌نیت روان شو .

---

(۱۲۹) انگریزی استعمار او افغانستان، ۱۱۳مخ همدارنگ
Arthur Swinson, North West Frontier, P 48.
(۱۳۰) په‌نولسمه پیړی کی‌افغانستان، ۱۵۴-۱۳۶مخونه .

انگلیسي پوځونه چې دغزني په داسې ژر فتح کولو باندې پوره زړور شوي وو دجولای دمیاشتې په ۳ نیټه دغزني څخه دکابل په لور راروان شول بې له دې چې په لاره کې د کوم مقاومت سره مخامخ شي داگست دمیاشتې په ۶ نیټه کابل ته راورسیدل. شاه شجاع په ډیره غلي سره فضا کې داگست میاشتې په ۷ نیټه چې مکناټن او الکساندر برنس هم ورسره ملگري وو ددېرشو کالو تبعید وروسته بالاحصار ته ننوت او په تخت کښیناست. (۱۳۱) .

دانگلیس اشغالگرو پوځونو دویمه ډله چې شمیر یې تقریباً ۶ زره تنو ته رسیده د کپتان ویډ او شهزاده تیمور تر قوماندې لاندې چې د پنجاب دسك حکومت په مرسته تیار شوي وو ، دجولای دمیاشتې په اخیره هفته کې د پیښور څخه د کابل په نیت راروان شول په دې وخت کې چې محمد اکبر خان د پلار په غوښتنه دخیبر څخه راگرځیدلی و دخیبر په علي مسجد کې په سرحدي پوله یوازې یوه کوچنی سرحدي قطعه موجوده وه چې د سرحد څخه یې ساتنه کوله. دجولای د میاشتې په ۲۶ نیټه دیوه سخت جنگ په نتیجه کې چې تقریباً ۱۸۰ تنه افغان شاه ځلمي وو وژل شول ، برتانوي تیري کوونکي پوځونه افغانستان ته داخل شول او داگست دمیاشتې په ۱۷ نیټه لومړی جلال آباد ته او د هغه ځای نه دسپتمبر دمیاشتې په ۸ نیټه کابل ته راورسیدل او د کابل په نظامي ستراتیژیك قلمرو کې ځای پر ځای

---

(۱۳۱) Louis Dupree, Afghanistan, P 378.

شول . (۱۳۲)

بر نسړ د کابل دو الی په توګه و ټاکل شو ، شاه شجاع هم په دي مجبو ر شو چی دده تر څنګ د دو لتی چار و په هکله یو انګلیسی دا یمی مشاو ر و منی ، چی په دی تو ګه دافغانستان په داخلی سیاسی ژ و ند کی د تیر ي کو و نکو کنترول قا یمیده .

بر تانو ي نما ینده ګانو هڅه کو له چی د بر چی او یا پیسو په زو ر خپله دنفو ذ لاره د افغانستان نو رو سیمو ته و غز و ي چی د همدي پالیسی سر ه سم د ۱۸۳۹ م کال دجو لاي د میاشتی څخه را په دیخوا په هر ات کی کپتان الیو ت فعالیت کاو ه او د یو ه تړو ن په نتیجه کی چی دده او کامر ان تر منځ لاسلیک شو ، کامر ان د هر ات باندینی سیاست د پنځه و یشتو ز ر و رو پو په بدل کی دانګلیسانو په وا ک کی ور کړ . (۱۳۳)

بر تانو ي پو ځو نه نه یو از ي د مر کز په مهمو سو ق الجشی ځا یو نو کی استو ګنه غوره کړه بلکی دافغانستان په اکثر و مر کز و نو او ستر و لار و کی لکه کندها ر ي او لنګ ر باط ، جلال اباد غز نی ، چا ر یکار ، بامیان ، کو ټه ، علی مسجد او نو ر و مهمو ځا یو کی ځای پر ځای شو ل . اشغالګر و پو ځو نواو س و کو لاي شو ل چی په پو ره بر ي سر ه جشن و نیسی . په افغانستان کی انګ یسی سفیر مکناټن هم و خت

(۱۳۲) دمیلسو ن ، دافغانستان تار یخ ، م ۳۰۵ - ۳۰۵ مخو نه .

(۱۳۳) انګلیستان دافغانستان پر ضد ، ۷۰ مخ

په وخت د بر تانوي هند گورنر جنرال لارډ اکلینډ ته او هغه بیا په خپل و ار سره لندن ته د خپلو بر یالیتوبونو او فعالیت راپور ورکاوه.

او س نو د ۱۸۳۸ م کال دا کتوبر د میاشتې د لومړی نیټې د لوظ پوره کولو وخت را نږدې شوی و چې لارډ اکلینډو یلیو: «کوم وخت چې شاه شجاع د کابل پر تخت کښېناست او په افغانستان کې ارامي راغله بر تانوي پوځونه به بېر ته بر تانوي هند ته راوگرځي.»

بر تانوي اشغالگر او س بايد د سملي فيصلې سره سم د خپل چوچ پوچ سره د افغانستان څخه وتلي و اي ځکه د دوي ارمان او س ترسره شوي و. سدوزي شاه شجاع دانگليسانو نږدي دوست او س د کابل پر تخت ناست و. د هند گورنر جنرال لارډ اکلينډ او مکناټين د دي پر عوض چې انگليسي اشغالگر دوعدې پر اساس د افغانستان څخه وباسي فيصله يې وکړه چې بر تانوي پوځونه دي په دايمي توگه په افغانستان کې پاتې شي او د هغوي يوازې يوه بر خه دې بېر ته بر تانوي هندته راوگرځي. د همدې فيصلې له مخې د ۱۸۳۹ کال د سپتمبر د مياشتې په ۸ نيټه په کندهار کې بمبۍ پوځ د خوږک او بو لان د ريي له لارې بر تانوي هند ته ستون شو. بيو ه مياشت وروسته د اکتوبر د مياشتې په ۵ نيټه د بمبۍ پوځ يوه بله بر خه د سرجان کين تر قوماندې لاندې د خيبر د رې له لارې حرکت وکړاو په عين موقع کې يې دا کتوبر د مياشتې په ۲ نيټه د بنگال پوځ ته دستور ورکړ شو چې د غه پوځ به د يو ي او ږدې مو دې دپاره په افغانستان کې پاتې

شی. همدا رنگه دسر جان کین په عوض سیجر جنرال سر ولو بی کاټن په افغانستان کی دانگلیس دعسکری قواو عمومی قوماندان په توګه مقرر شو. (۱۳۴)

په انګلستان کی د افغانستان دفتح کولو او کامیابی په نسبت بیشماره خوشحالی وشوی اود انګلستان پاچا له خوا په همدی مناسبت شانداره محفل ترتیب شو او دخدماتو په بدل کی یی دبرتانوی هند ګورنر جنرال لارډ اکلیند او په افغانستان کی دبرتانوی قواو عمومی قوماندان سرجان کین او په افغانستان کی دبرتانیی سفیر مکناټن ته دافغانستان دفتح کولو په سبب په ۱۸۳۹م - ۱۲۵۴ق کال کی په ترتیب سره دارل ( Earl ) بارون او سر په جایزو سره مفتخر کړل. (۱۳۵).

---

(۱۳۴)، دپښتنو تاریخ، دویم جلد، ۱۱۵-۱۱۶ مخونه

(۱۳۵)، افغانستان درمسیر تاریخ، ص ۵۳۴.

# شپږم فصل

## الف: په افغانستان کې د انګلیسانو واکداري.

کوم وخت چې شاه شجاع د دوست محمد د پاره د کابل پر تخت کښیناست، د هیواد په ټولو سوق الجیشي ځایونو کې انګلیسي پوځونه ځای پر ځای شول. داچې اشغالګرو د بیرته وتلو تصمیم نه درلود، د قشلو او سنګرو نو په ابادولو یې پیل وکړ او د افغانستان تقریباً په ۳۲ سیاسي واحدونو باندې یې حاکمان مقرر کړل ملا عبدالشکور د شاه شجاع دوزیر په توګه وټاکل شو. (۱۳۶)

شاه شجاع د دوست محمد پاچاهي په لومړي وخت کې د ټولو غلزیو او نورو پښتنو قبایلو په نوم لیکونه ولیږل او هغوی یې داسې وپوهول چې انګلیسان زموږ د هیواد په داخلي چارو کې مداخله کوي، یوازې زما د مرستې له پاره په موقتي توګه راغلي دي او د

---

(۱۳۶) انګریزي استعمار او افغانستان، ۱۱۵-۱۱۶ مخونه

کابل د جاړو د سمو لو نه و روسته به د خیبر د ري له لارې په پېښو ر
یرغل و کړي او سو ړ یه دسکانو له شر څخه خلاص کړي او د هغه نه
و روسته به هندو ستان ته و لاړشي.(۱۳۷)

برتانوي تیري کوونکي چې او س يې خپل ځانو نه د افغانستان
مالکان ګڼل عملاً يې د افغانستان ملکي او نظامي چارې په لاس کې وا-
خستې او د خلکو د حمل او نقل د وسا ئلو داستو ګنځیو ، د خوراکې
موادو او شخصي شتمنیو په ضبطو لو او لو ټو ي لو يې لاس پو رې کړ
چې د لو ټمار یو ، خپلسریو او بې د سپلینۍ د غه جریانو په سختۍ سره
د خلکو احساسات و کړ که د تیري کوونکو په مقابل کې را پار و له
او حالات و رځ په و رځ پېچلي کیدل .

شاه شجاع هم په لو مړنیو ورځو کې د افغان پاچا هانو د رسم او رواج
سره سم په تیا کلاو ورځو په عام د ربار کې د اولس غوښتنو سره
ځان پو ختو لو ، خو لا ډیر موده نه و ه تیره شوي چې د ي د انګلیس محافظینو
په ذریعه محاصره شو او د انګلیس افسرانو له اجازې پرته هیڅ افغان
نه شو ای کولای چې پاچاو وینی. راشي چې د افغانستان پاچا شاه شجاع
حال او احوال په خپله د یو انګلیسي منصبدار هنري د یو رند څخه و او-
ر و :«پاچا د پر د یو د لاسرا له و او د هیو ادادار ه د انګلیسانو په لار
ښو د نه کیدله.څر نګه چې د غه کار د افغاني احساساتو نه مخالفت و ، نو

(۱۳۷) محمد حیات خان، حیات افغاني، ۳۳۱ مخ.

خلکو له هغه نه نفرت کاوه نو په دې توګه د برتانوي سفیر حقیقي پاچا ګڼل کېده».(۱۳۸)

داچې د برتانوي اشغالګرې اردو زیاته برخه په افغانستان کې پاتې شوې وه، دولت مجبور و چې د هغې زیات مصارف د هېواد له منابعو نه تیار کاندي او په خلکو باندې لوړه مالیه تحمیل کړي. دا کار د افغانستان غوندې یو غریب هېواد ته مشکل تمامېده. په عین وخت کې مالیه چې پخوا به د قومي مشرانو په واسطه ټولېده اوس مستقیماً د برتانوي تېري کوونکو په ذریعه په زور او ظلم اخستل کېده. دغه کار د قومونو مشران سخت خوابدي کړل. او د دولت او اولس ترمنځ یوه خلا منځ ته راغله. په عین موقع کې شاه شجاع د پاچاهۍ په لومړیو ورځو کې ټولو قومونو او قبایلو ته ډاډ ورکړ چې ستاسو ټول پخواني حقوق او امتیازات به درکړل شي. په افغانستان کې د ډېر پخوا څخه معمول و چې اکثرو قومونو به میراثي حکومتونه او رتبې درلودې مګر دغه امتیازونه د انګلیسانو او شاه شجاع په راتګ سره یاد و ي څخه و اخستل شول او یا په هغو ي کې کمښت راغی چې په دې توګه زیاتو قومونو د وظیفو اخستلو څخه انکار وکړ.(۱۳۹)

شاه شجاع هم دوخت په تېرېدو سره د انګلیسانو څخه په تنګ شو ځکه د پاچاهۍ ټول اختیارات انګلیسي افسرانو په لاس کې واخستل او دي

(۱۳۸) په نولسمه پېړۍ کې افغانستان، ۱۵۲-۱۵۳ مخونه .

(۱۳۹) دسیلسیون، دافغانستان تاریخ، ۳۶۳-۳۶۴ مخونه.

یو از ي په‌نو م د پاچاهي پر تخت ناست و . دانګلیسانو دغه بې ځایه
و رځ په‌و رځ زیاتیدو نکو مداخلو د پاچااو په کابل کې دانګلیسي
نمایندګانو اړیکې په ښکاره تو ګه د تاشیر لاندې راوستې او اختلاف منځ
ته راغې. عامو خلکو ته هم او س په پو ره تو ګه ښکاره شوه چې شاه‌شجاع
یو خپلو اک پاچا نه بلکې دانګلیسانو په لا س کې یو ګو ډاګې دي چې
هغوی‌ته یې راد مخه کړي دي. د پاچا په مقابل کې او لس نفرت دومره زیات
شو چې حتی د جامع جوما تونوا ماما نو په خطبه کې د شاه‌شجاع نو م اخستل
منع کړل. څه‌شی چه د زیاتو جه‌و ړدي هغه داچې د غلو ، سبز یو او و اښو نرخو نه نهایت لو ړشو ل. دځمکو خاو ندانو به زیاته غله په ګران
قیمت په انګلیسانو باندې خر څو له او ډیر کم‌شی به یې ځانته ساته چې
په دې تو ګه عام او لس او ښار و ي دلو ږې‌نه مړه شو ل. (۱۳۰)
اقتصادي او سیاسي حالات و رځ په‌و رځ پیچلي کیدل او د هیو اد په
ګو ټ ګو ټ کې دیو ي عامي قحطي اثار له‌و ر ایه ښکار یدل. په ز رګو نو
خلک ګداي ګر ي او بیو ز لتو ب‌خو اته‌سو ق شو ل . و ایې چې د کابل
و الي بر نس به هره و رځ ز ر ډو ډې د کابل ښار په غر یبانو باندي
تقسیمو لې. البته‌دا د هغې استثما ر بر کت ؤ چې برتانو ي استعما ر چیانو
د افغانستان او لس ته په‌ار مغان را وړي و . ملاعبدالشکو ر د شاه‌شجاع
و ز یر به همیشه هغه کو له چې د ښا ر نر خو نه کنتر و ل او په هیو اد
کې و ضع عادي کاندي .

---

(۱۳۰)، د پښتنو تا ر یخ ، دو یم جلد، ۱۲۸ مخ .

انگلیسانو دخپل پر سخ تلو نکی صنعت د پاره کوښښ کاوه چې د افغانستان کو چنی او محلی صنایع د نابو دي سره مخاسخ کړي او په عوض کی یی انگلیسی مالونه دافغانستان په بازارونو کی عرضه کړي. خو بیا هم پر وطن مینو ځلمیانو دانگلیسانو ددغه پر اگرامو نو سره مخالفت کاوه حتی ملاعبدالشکور په پټه داستعما رگرانو پر ضد ملی مبارزین تشویقول. خو دغه با احساسه ملا ډیر ژر د همدغه عو املو په پام کی لرلو سره دسیاست له صحنی څخه ویستل شو او دشاه شجاع دسپکاوی او بی عزتی دپاره هم دبرتانوي نمایندګانو له خوا پلان طرح شو. (۱۳۱)

دخیبر پښتنو خو لا دمخه دسرجان کین پوځونو ته دخیبر په تنگی کی دو تلو په حال کی سخت گزار ورکړ او په اشغا لگرو پوځونو یی سپین سباتو روشپه کړاو دستر گو په رپ کی یی دهغو ی دقطارونو څخه څلور ـ پنځه سوه او ښان په غنیمت بو تلل او دجنرا کین یو ټولی هم بی تکولو دپښتنو ددي تاریخی سیمی نه په ارام تیر نه شو. (۱۳۲)

د ۱۸۳۹م کال په اوړي کی لو سړی دغلز ا یی قلات او د هغه په تعقیب د پکتیاد زرملی په شاو خوا کی د پراخ پاخو ن او ربل شو او او لس د دوست محمد خان اسحق زي، نورالدین خان بامی زي، محمد نقی خان و کیل او مهتر موسی خان غلزي په مشر ی داشغالگرو پر ضد راپورته شو چی همیشه به یی دکابل او کندهار دتګ او راتګ لار ه تهدیدو له.

---

(۱۳۱) د پشتنو تاریخ ، دوه یم جلد، ۱۲۶ - ۱۳۰ مخونه.

(۱۳۲) دمیلسون، دافغانستان تاریخ، ۳۶۳ مخ .

د ۱۸۳۹ م کال د دسمبر په سیاشت کی وطن پرستانو د کابل او غزنی ترمنځ دانګلیسی بدرګی یو لوی ټولګی ته ماتی ورکړه او دهغه قوماندان کلنل هیرینګ بی ووژه.(۱۴۳)

کله چی شاه شجاع د ۱۸۳۹ م کال په ژمی کی داشغالګرو پوځونو په ملګرتیا جلال اباد ته ولاړ، د کونړ خلک دسید هاشم خان په رهبری د شاه او دهغه ملګرو پر خلاف راپورته شول او لیږ ژر دا قیام د دولت د پوځونو له خوا چی د هغه قوماندانی د مکریګر انګلیسی افسر په لاس کی وه وځپل شو. ډیر یو ړنګی لانه وو چی تیری شوی چی بیا د مشرقی خلکو د عبدالعزیز جبار خیل په رهبری پاڅیدل د هغه په تعقیب دغو ګیاو خلکو د دولت ته د مالیی ورکولو نه انکار وکړه . کانلی انګلیسی افسر هغه خوا ته ولیږل شو چی بالاخره دغه مشکل د هغه قیود الانو په منځګړتوب حل شو چی په جلال آباد کی د شاه سره یو ځای شوی وو.

(۱۴۴) ملیی مبارزینو د ۱۸۴۰ م کال په پسرلی کی د کابل او کندهار لار د اشغالګرو پر مخ وتړله او په قلات کی دانګلیسانو نظامی چاونی په کلی توګه نابوده شوه. جنرال نات د غلزیو د ماتولو دپاره د کندهار نه دا ینډرسن تر قوماندی لاندی یو پوځ قلات ته ولیږه. په نتیجه کی د قلات د مبارزینو او انګلیسی تیری کوونکو ترمنځ سوله وشوه ـ غلزیو ته په کال کی ۳۰۰ زره روپی مقرری شوی مګر داچی او

---

(۱۴۳) په نولسمه پیړی کی افغانستان، ۱۵۶ مخ همدا رنګه
Afghanistan Past and present, P 102-103
(۱۴۴) ،افغانستان در مسیر ،تاریخ ،ص ۵۳۹.

او لس داستعمار ګر و پوځونو په مقابل کې نهایت تحریك شوي وو د دوی دا پلان او هڅې هم د ناکامۍ سره مخامخ شوي او ډیر ژر بیا د تیري کوونکو پر ضد راپورته شول. د ۱۸۳۹ م کال د نومبر په میاشت کې چې د قلات خان محراب خان د یرغلګرو پوځونو په واسطه وژل شوی و د هغه په انتقام کې یو ټولګی انګلیسي پوځ دانګلیسي نماینده په ګډون وژل شو. (۱۳۵) .

داچې جنبش ورځ په ورځ سخ په پراخیدو وچې بالاخره دسبا ر ز- ینو او وطن پرستانو داجنبش کابل او بانډو ته هم پراخ شو. کور په کور ، کوڅه په کوڅه دانګلیسي نظامیګرو پر خلاف دخلکو کرکه او نفرت همیشه زیاتیده. وطن پالو ځوا کونو به همیشه د دښمن پر قشلو ، قطارونو او کاروانو باندي یرغلونه کول او د دوی څخه به یې سالونه په غنیمت اخستل .

په همدې وخت کې چې دافغانستان حالات ورځ په ورځ پیچلي کیدل ، انګلیسانو ته خبر ورسیدچې دتزاري روسیې پوځ خیوي خوا ته دحرکت په حال کې دي. انګلیسانو هم ډیر ژر په اقداماتو لاس پورې کړه سمتر لارد چې په دې وخت کې دافغانستان په شمالي سیمو کې دسیاسي نماینده په توګه ټاکل شوی و ، بامیانو ته ولاړ او کرنیل کانلي خیوا ته ولیږل شو. سیجر تاډ هم دهرات څخه وشړل شو

---

(۱۳۵) دمیلسون ، دافغانستان تاریخ ، ۳۶۸ مخ .

انګلیسانو و نه کړای شول چې یار محمدخان الکوزي سره یو تړون لا-
سلیک کړي. (۱۴۶)

د ۱۸۴۰ م کال د فبروري په میاشت کې د شاه شجاع هغه فرمانونه چې په هغو کې د افغانستان د خلکو پاڅون د برتانوي یرغلګرو په مقابل کې غوښتل شوي و، د انګلیسي جاسوسانو په لاس کې ولویدل همدا رنګه شاه شجاع یو بل نږدې اعتباري ملګری منصور خان کندهار ته ولیږه تر څو د کندهار خلک د انګلیسانو پر خلاف ودشا. په طرفدارۍ تنظیم کړي او لې د غه سړي هم د انګلیسانو له خوا نیول شو او په عین وخت د مارچ په میاشت کې ملا عبدالشکور د وزارت څخه لرې کړي شوا و محمد عثمان نظام الدوله د هغه پر ځای وټاکل شو. سکناټن چې په دي ورځو کې سخت ورخطا شوی و د وطن پرستانو یو تعداد یې بندیان کړل. په همدې ورځو کې چې انګلیسي نماینده ګانو په سخت شانتاژ لاس پورې کړي و د ملي مبارزینو له خوا اعلامیه خپره شوه چې په هغه کې لیکل شوي و چې ډیر ژر به ځني مشهور رقیبی مشران هند ته تبعید شي (۱۴۷).

په داسې حال کې چې د افغانستان خلکو د تاریخ په دې حساسو شیبو کې بې رهبري ته سخت ضرورت درلود، امیر دوست محمد خان د بخارا امیر نصرالله خان څخه په تښتیده مو فق شو او د ۱۸۴۰ م کال په منځ کې د هندو کش څخه را تیر شو او د افغان او لس په سرسته یې د انګلیسانو پر ضد مبارزه پیل کړه (۱۴۸).

---

(۱۴۶)، د پښتو تاریخ، دوېم جلد، ۱۳۳–۱۴۳ مخونه.

(۱۴۷)، افغانستان در مسیر تاریخ، ۵۳۹–۵۴۰ مخونه

(48) W.K. Fraser Tytler, Afghanistan, P. 114.

## ب: د افغانانو مقاومت او د امیر دوست محمد خان تسلیمېدل:

کوم وخت چې امیر دوست محمد خان ددویم ځل د پاره دافغانستان د سیاست په صحنه کې راښکاره شو، دخلکو او حاکم له خوا ورته ښه هر کلی وویل شو او داشغالگرو پوځونو دایستلو دپاره یې دافغانستان په شمالي سیمو کې دسپارزینو په ټولو لو ښیلو کړ او په لږه موده کې تقریباً پنځه زره جنگیالي شاه ځلمي د ده سره ملگري شول. انگلیسانو هم سخکې له سخکې تیاری درلوده او سارجنټ دگلس انگلیسي افسر دیوه ټولگي سره د هندوکش په مدخل کې ده مقابلې د پاره تیار و. دشهزاده محمد افضل خان په یوه حمله کې چې د ۱۸۴۰ م کال داگست دمیاشتې په ۳۰ نیټه په باجگاه نومي ځای کې وشوه، انگلیسي سر بازانو ماتې وکړه او په شاشول. خو ډېر ژر دانگلیسانو دغه قوا د لفتننټ سټرت په دوهم ټولگیو سره پیاوړې شوه. (۱۳۹)

دهمدې کال د سپتمبر په میاشت کې امیر دیو تعداد زیاتو سلې مبارزینو په ملگرتیا دبامیانو خواته راغی. په بامیانو کې انگلیسي قواوې

---

(۱۳۹) دمیلسون، د افغانستان تاریخ، ۳۷۱ مخ.

ديو پوځ په ذريعه چې د کرنيل ډېنې تر قوماندې لاندې و ، يې، پخوا د
امير د مقابلې د پاره پياوړي شوي وي . انګليسي پوځ نابره د سپتمبر د
مياشتې په ۱۸ نېټه پر امير يرغل وکړ نو دې و چې امير ونيول شي خو په
زحمت امير له دې خطر نه خلاص کړ او سيغانو ته په تېښته شو چې ورو-
سته بيا تاشقرغان ته ولاړ. په همدې وخت په کوهستان کې شور ښ د
اشغالګرو پر ضد د مير مسجدي خان او سلطان محمد خان نجرابي په مشرۍ
رهبري کېده. امير هم د ليک په واسطه کوهستان ته دعوت شوي و.
انګليسانو چې د مبارزينو دغه حال وليد يو ستر پوځ يې د شهزاده تيمور
د شاه شجاع زوي، او جنرال سېل ( General Sale ) تر قوماندې
لاندې هغه خوا ته ولېږه او سربېره پر دې يې د شورش کونکو مشرانو
سره د خبرو کولو او د پاتې مشرانو د ګټو ن دسخ نيوي د پاره انګليسانو
برنس د کابل والي هم له دې هيئت سره ملګري کړ. (۱۵۰)

د سپتمبر د مياشتې په ۲۸ نېټه په توتمدره کې د افغان مبارزينو او
انګليس پوځونو تر منځ سخته جګړه وشوه چې د هغې په ترڅ کې
ا[illegible] وژل شوي .

افغانانو بې حده مېړانه وښوده سګر دا چې د انګليسي توپونو سره دفاع
مشکله وه نو ملي مبارزين پر شا شول. د اکتوبر د مياشتې په ۳ نېټه
انګليسانو د مسجدي خان په کلا حمله وکړه او په خپله مسجدي خان هم

---

(۱۵۰) ، په نولسمه پېړۍ کې افغانستان ، ۱۶۱-۱۶۲ مخونه .

دیوه سخت جنګ په نتیجه کی تپی شواو په شپه کی د کلا څخه په تښتیدو سر ه‌بر ه‌ و فق شو .(۱۵۱)

امیر دا کبر دسیاستی په ۸ ۲ نیټه‌له نجراب‌نه پر وان‌ته راغی‌او دجهاد په نوم سره یی خلك راټول کړل. په همدي وخت کی یو تهو لی افغانی سرباز ان‌دانګلیسی‌قو او څخه جلا او د امیر دوست محمدخان‌سره یو ځای‌شول. دمحمدخان‌ور ه‌چی‌دامیر دوست محمدخان خوروه‌کور په‌کور او کلی په کلی‌دقرآن‌شریف‌سره ګرځیده، خلك‌یی دانګلیسانو پر ضد راپار ول‌چی‌د هغه‌جملی‌څخه‌میر درویش‌خان‌دباباقشقارخان او ملك‌سیف‌الدین‌خان دګلدري‌خان‌سره دخپلوعزیز انو ، دانګلیسانو په‌مقابل کی‌ودریدل‌او په‌انګلیسانو باندي‌یی‌تیت‌او پراګنده‌حملی پیل کړي.(۱۵۲).

امیر دوست محمدخان‌چی‌و رسره‌ ډېر زړه‌جنګیالی‌و دنومبر دمیاشتی په ۲نیټه‌دجنرال سیل‌پوځونو سره‌مخامخ شو .د هغه‌سختی‌جګړي په نتیجه کی‌چی‌ددواړو قو او تر منځ وشوه، انګلیسی‌سپور پوځ‌ماتی و کړه‌او دهغوي څخه په‌شمالی سیمو کی‌سیاسی نماینده‌مستر لارد لفتننټ‌براډفت( Lieutinan Broad foot)اوریډجوینټ کرسپین (Red Joint Crispin )ووژل‌شول.میجرپانسنبی( Ponsonby) او میجر فریزر ( Major Fraqzer)سخت ټپیان شو ل.دانګلیسی

---

(۱۵۱)دپښتنو تاریخ ،دو یم جلد. ۳ ۱ مخ.

(۱۵۲) په‌نو لسمه پیړی کی‌افغانستان،۳۶۳مخ .

پوځ ساتي جنرال سيل او شهزاده تیمور سخت و رخطا کړل لکه چې بر نس د شپې په ۳ بجو جنرال سیل ته لیك و لیږه چې فوري خپل پوځونه ترچاریکارو پورې په خټ کړي چې د هغه په سبا جنرال سیل خپلو پوځونو ته د په خټ کیدو امرو رکړ خکه چې د جبهې ترشا کلیو څخه هم د اوه نه و او داریده چې انګلیسي پوځ د ښو ر ښې خلکو په سنځ کې راګير نه شي.(۱۵۳).

انګلیسي تیر ي کو ونکې د امیر دوست محمد خان د دي کامیابي څخه سخت په تشو یش کې و لو یدل او د افغانانو دسیاسي ساتي په خاطر یې نوي تدبیر و نه و نیو ل او بې شماره جا سو سان یې د سبار زینو تر منځ تیت او خو اره کړل .انګلیسي اجنټانو په کمو خت کې وکولاي شول چې د پیسو په زور سبا ر زینو تر منځ نفاق و اچو ي .امیر هم چې د دښمن د دي پالیسي څخه بې خبر ه نه و په و یره کې و لو یده او په شپه کې د خو تنو وفادارو ملګر و سره د لنبکر څخه جلا شو .محمد افضل خان دامیر زوي چیا هم د اشغالګر و پوځونو پر خلاف جګړې ته ادامه ور کړه چې وخت او ناو خت به یې پر انګلیس پوځونو باندي پر غل کاو ه (۱۵۴).

سو هن لال چې په خپله د جنګ په ډګر کې موجو دو داسي لیکي: «په پروان کې پوځي بر تانوي نماینده ګانو ته خبر و رسیدچې

(۱۵۳) افغانستان په نولسمه پیړۍ کې، ۳۶۱ مخ .

(۱۵۴)، د پښتنو تاریخ، دو یم جلد ۳۱–۳۲ مخو نه..

اسیر په‌خپل لشکر کی‌نه‌لیدل کیږي بلکی‌کو سی‌نا سعلو سی‌خو ا ته‌تللی‌دي‌او لښکر یې‌بی‌سر و سامان پا تی‌شوي دي».

رښتیا هم‌چی‌سلی‌سبا رز ین یوا ز ي‌پا تی‌شو ي‌و و څکه‌چی‌دنو سبر په‌سم‌نیته‌دسکناتین‌له‌خو اجنر ال‌سیل او بر نس ته‌بو لیك و رسیده چی دد غه‌لیك‌له‌مخی‌په‌کابل‌کی داسیر له تسلیمید و نه‌دو ي‌ته خبر و رکړشوي و. (۱۵۵)

داچی‌و لی‌اسیر په‌داسی حال‌کی‌چی او لس هم‌دده تر څنګ‌و لاړو، همدا رنګه‌دجنر ال‌سیل سپو ر پو ځ ماتی‌و کړه، بریاو کامیابی‌دده‌په پلو و ه‌بیا هم خپل‌ځان‌اشغالګر و ته تسلیم کړ هغه هم‌په‌دي‌تو ګه‌چی یوه‌و رځ‌دپر و ان‌له جګړي نه‌و ر و سته‌کله‌چی مکناتین‌دخپل‌سا‌تو نکی‌ګارد سره‌دخپل ځاي څخه دآس‌په‌سپر لی هو اخو ر ي‌ته‌دباندي راوتلی و،نا ببره‌یوسپو ر مکناتین ته‌په‌تر اټ‌راغی:«اسیر-اسیر!»مکناتین و و یل:« کوم اسیر؟) په‌دي موقع کی‌انګلیسان سخت وارخطاشو ل او دسپر و دبرید انتظار یې درلو د مګر ډ یر ژ ر ښکاره‌شو ه چی‌اسیر یوا ز ي‌دخو تنو بدر ګه‌کو و نکو سلګر و سره را ر و ان‌دي‌و ي‌و یل چی‌اسیر ځان‌په‌اسار ت سره‌تسلیموي.البته‌اسیر و ر و سته‌خپلو ز امنو ته هم‌ولیکل‌چی‌تاسو هم‌زما په‌شان‌خپل ځانونه‌انګلیسی‌قواوته. تسلیم کړی (۱۵۶) داچی‌ولی‌اسیر ځان‌بر تانو ي‌قو او ته تسلیم کړ په‌رنګا رنګ‌بڼو

---

(۱۵۵) په‌نو لسم«پړی کی‌افغانستان،،م ۱۶۰-۱۶۵ مخو نه

(۱۵۶)،انګلستان‌دافغانستان پر ضدد تا ریخ پا ڼی،م ۶ مخ

سره تعبیر یری د یو دستر انگلیسی افسر سر جان کین دا ری گمان دی چی امیر دوست محمدخان دخپل اخري شکست په خیال دیو ه فاتح په حیثیت تسلیمیدل ډیر مناسب و گڼل.(۱۵۷) بوشو رو ي مورخ بیاداسی عقیده لري :« امیر فکر کاوه چی تر خلاند ه بری یو روسته به دښمن دده قدرت او په هیو اد کی حیثیت په بل ډول ار زیابی کړي او په دي ترتیب به دچار و و اگی په لاس و ر کړي.دا هم له امکان نه بهر نه ده چی ده خپل بریالیتو بو نه تصادفی او دلیرو دي دپاره گڼل او ناسر دي یی و کړه».(۱۵۸)

ځینی نو رمو رخین داسی لیکی :

امیر دانگلیسی پو ځو نو له تیتو پر ک کیدو نه خبر نه و او هم په کو هستان کی دانگلیس دستر قوت په مقابل کی له بری نه مایوس شوی و . په دي فکر کی شو چه د غلزیو قو مو نو ته و رشی او بیا خپل بخت و ازمایی لکه چی دمخه دده زامن محمد عظیم خان، محمدا کرم خان او شیر علیخان له غز نی څخه دانگریسانو له بندي خانی نه تښتیدلی او د پکتیا ز رملی سیمی ته د ننه شوی و و .امیر یی هم هغه خوا ته دعوت کړي و نو کله چی دي د تنگ په فکر کی شو غو ښتل یی چی د کابل په شمخ کی تیر شی او لا زم یی و لیدل چی څو ک خبر نه کړي او یو ازی دجامو د بدلو لو په حال کی هغه خو اته و لاړشی. (۱۵۹)

---

(۱۵۸) ،انگلیستان دافغانستان پر ضد دتاریخ پانی،م ۲ مخ.

(۱۵۹) پهنو لسمه پیړی کی افغانستان ، ۱۶۵-۱۶۶ مخو نه .

محمدحيات خان بيا داسي ليكي: شاه شجاع دخــان شــر يــن خــان پــه پيژنگلوي دوست محمدخان پــه چلول ســره كابل ته را وغــوښت او انگليسا نــو تــه يي داسي وښــودلــه چــي دوست محمدخان پەخپله راغلي دي. (١٦٠)

نو هن لال وايي: چي كه چيري امير خپل ورېيه پروان كي تعقيب كړي وای او يا لږتر لږه دجگړي له ميدان څخه نه وای وتلي، انگليسان به په كوهستان كي له ستري ساتي سره مخامخ شوي وای. په كابل كي د انگريسانو ساتو رين او منصبدار ان دوسره ويريدل چي دامير دوست محمدخان بيا ځمنی ته راتگ يي يو حتمي امر گانه او دښار دمدافعي تر تيبات يي نيولي وو او حتی ځيني خو په همدي فكر كي وو چي دامير سره خبري وشي. لكه چي څه وخت امير دوست محمدخان سكناټن ته ورغی او دده حاضر باش ته يي وويل ــ ورته ووايه چي امير له تاسره ملاقات كوي. سكناټن په ورخطا يي پوښتنه وكړه چيرته؟ له عسكرو سره كه بي عسكرو؟ (١٦١) له دغه او ضاعو څخه داسي معلو ميږي چي حتی سكناټن په كابل كي هم دامير بنكار يدل دسلي سبار زينو او لس سره انتظا ردرلو د.

په هر حال امير دخپلي تسليمي نه خوړ رځی ورسته دخپلي كوزني سره د. ١٨٤٠ م كال دنوامبر دمياشتي په اخيرو ورځو كي په ډير عزت

---

(١٦٠) محمدحيات خان، حياتي افغاني، ٢٣٣ مخ.

(١٦١) پەنو لسمه پيړی كي افغانستان، ٦٦١ مخ.

او احترام سره د سر ولو بی کاټن (Sirwiloughby cotton)
د بر تانوي قو او عمومي قو ماندان سره چې د دغه وظیفه په افغانستان کې
سر ته رسیدلی وه او پر ځای جنرال لفنستن( Gen-Elphinstane
مقرر شوي و ، بر تانوي هند ته و لیږل شو.(۱۶۲)

J.G. Eniot, The Frontier, London, 1968 P22, (162)

# اووم فصل

## الف: دافغانستان دخلکو ملي پاڅون

په افغانستان کې دامیر دوست محمدخان په لیږدولو سره جګړه ختمه نه شوه بلکې کابل، کندهار، ګرشك، قلات، پکتیا، ننګرهار لغمان، خیبر چاریکار او نور ځایونه د ډیرو مهمو خوځښتونو مرکزونه ګڼل کیدل .

په پروان او کاپیسا کې هم داشغالګرو پر ضد فعالیت روان و چې په مناسب وخت کې به یې پر انګلیسي مرکزونو یرغلونه کول . د ۱۸۴۰ م کال دنوامبر دمیاشتې په ۲ نیټه دچاریکار و قشله دمبارزینو له خوا محاصره شوه چې وروسته بیا ینه وتکول شوه او انګلیسي افسرپا تجرته ورشو هدې جارې میاشتې په ۱۳ نیټه دچاریکارو په قشله کې پنجابي انګیلسي پوځ دانګلیسي افسرانو پر خلاف قیام وکړ ، هارتین

دقشلی‌تو ساندان‌سخت‌تیپی‌شو چی‌و ر و سته یادغه‌دوار انګلیسی‌افسر ان پا تنـجر ا و ها ر تین په بـدلـو افغانی جـامـو کی پـه پټه کابـل ته راغلل. (۱۶۳)

د همد ي کال‌د دسمبر په میاشت کی‌د ز مین‌داو ر خلك‌دا ختر خان په ر هبر ی دانګلیسانو پر خلاف را پـو ر تـه شـو ل .جنـر ال ناټ (Gen-Nott)د غه پـو ر ش‌د هغـه انګلیسی‌پو ځ په واسطه دفع کړ،چی‌د کند ها ر نه‌و ر پسی‌لـیر ل شو ي‌و هـغه‌اسنادچی‌د کپتان رالنـسن (Capt-Rawlin son) انګلیـسی افسر لاس‌ته‌و رغلی و و،و یل کیدل‌چی‌د ز مین داو ر یو ر ش‌دشاه شجاع په‌تحر یك‌شو ي دي‌چی‌و ر و سته‌بیادغه اسناد مکناټن ته‌ر او لیږ ل شو ل .مکناټن هغه بیاشاه شجاع ته‌و ښو دل.(۱۶۴)

په افغانستان کی ۱۸۴۱ م کال‌دلـو سږ یو و ر ځو ځخه دانګلیسانو دپار ه سپیر ه و ،ځکه‌چی دافغانستان پـه‌ا کثر و ځایو نو او قو مو نو کی داشغالګر و پر ضدتحر یـك او جنبش ر و ان و .او د ۱۸۴۱ م کال‌د جنو ر ی په‌میاشت کی افر یدي‌قبایل‌دانګلیسانو په‌مقابل کی را پو ر ته‌شو ل‌او دانګلیسانو پر مخ یی دخیبر لار ه و تړ له ، کر نیل‌شلټن‌خیبر ته‌و لیږل‌شو تر څو هغه‌قبایل‌ار ام کانـدي .همدا ر نګـه‌د ۱۸۴۱ م کال

(۱۶۳)افغانستان‌د ر مسیر تار یخ ،ص۳۳۵.

(۱۶۴)دسیلسو ن،دافغانستان تار یخ ،۳۷۵-۳۷۶مخو نه.

د اپریل په میاشت کې د غلزایي قلات خلکو د ګل محمد خان په رهبرۍ د انګلیسانو پر خلاف پاڅون وکړ او د کندهار د دوو سیاسي نماینده مستر لیچ د نظامي تفتیش مخه یې ونیوله خو روسته بیا جنرال ناټ د کندهار د انګلیسي پوځونو قوماندان د جنبش د خپه کولو د پاره د کندهار نه قلات ته د سپرو کنډک ولیږه. همدغسې د مې په میاشت کې بیا د ګل محمد خان په رهبرۍ د انګلیسانو پر ضد ګوریلایي ګروپونه تنظیم شول او وخت ناوخت یې پر انګلیسي ګارنیزیونو باندې ـ بریدونه کول. د افغانستان په زیاتو برخو کې د انګلیسانو پر خلاف جنګ دوام درلود، خو بیا هم په افغانستان کې انګلیسي نماینده ګانو برتانوي هند ته د خیرت راپور ورکاوه. د ۱۸۷۳ م کال د فبروري په میاشت کې مکناټن دا عبارت بیرتا نوي هند ته لیکلي و: «که سړی ټولو د خبرو ته فکر وکاندي نو حاضر وخت په ملک کې داسې امن او ارامي ده چې سړی ورته حیرانیږي». (۱۶۵)

د ۱۸۴۱ م کال د جون په میاشت کې د اختر خان په رهبرۍ په کندهار کې قیام وشو. انګلیسان تر ډېره حده پورې په تنګ شول چې رالنسن خپل سرستیال ایلیټ د سولې د پاره د مبارزینو ټولګیو ته ور- واستاوه. همدا رنګه د ګرشک په شاوخوا کې هم خلک د محمد اکرم په رهبرۍ د تیري کوونکو پر ضد راپورته شول او د ملي پاڅون د بیر غونه یې وتړل. د هلمند په ساحل کې د انګلیسي پوځونو او ملي مبار- زینو تر منځ سخته جګړه وشوه چې انګلیسان په دې مجبور شول چې

---

(۱۶۵) د افغانستان تاریخ؛ ۳۷۶-۳۷۷ مخونه.

د کندهار نه نور پوځونه د شهزاده صفدر تر قوماندې لاندې هغه
خوا ته ولېږي. دا چې وطن پرستانو ښه وسله نه درلوده انګلیسي تو-
پونو په مقابل کې به په شا کېدل. ملي ستر مبارز محمد اکرم خان مجبور
شو چې د ملي قواوو د راتلو لو لو د پاره د هراوود ته لاړ شي چې وروسته
خپله جنرال ناټ هغه ځای ته و لاړ او د غه ملي مبارزينو په کند-
هار کې يې چپاو ري کړ. د جولاي په مياشت کې د غزني مبارزينو د
کندهار او کابل لاره د اشغالګرو پر مخ وتړله. کله چې لفتننټ ګراد-
ؤورد د کندهار د بنديانو سره د دغه سيمې څخه تېريده، ملي مبارزينو
پر هغوي يرغل وکړ انګليسي قواوې د هغه د افسر په ګډون تباه
شوې او بنديانو ته د وطن پرستانو له خوا هر کلی و ويل شو (۱٦٦).

د حيرانتيا ځاي خو دا دي چې د دې حالاتو سره سره چې د افغانستان
په ګوټ ګوټ کې د يرغلګرو پر خلاف د پاڅون څپې په بېړه رواني وې
بيا هم دوي د افغانستان حالات ارام او په زړه پورې ښودل. لکه چې
مکناټن د اګست د مياشتې په ۲ نيټه برتانوي هند ته داسې راپور ليکي:

«د انګليسانو اميدونه په زړه پورې او د پوره ډاډ وړ دي او د جنګ په
کوم سامان چې زمونږ سره شته د ټول ملک ښه ساتنه او انتظام کېداي شي»
(۱٦٧) د همدي کال د اګست په مياشت کې بيا هم د اشغالګرو يو ټولي
چې له کندهار نه کابل خوا ته راروان و د کپتان ووډبرن په ګډون
له منځه ولاړ.

---

(۱٦٦) افغانستان در مسير تاريخ، ص ۵۳۵-۵۳٦.

(۱٦٧) دميلسون، دافغانستان تاريخ، ۳۷۷ مخ.

پــه افغانستان کی انگلیسی نمایــنده گانــو همیشه سعی درلوده
چیدقوسو نو او قبایلو تر منځ نفاق واچوي او بیا تري دوي ګټه واخلي
چیالبته ددي سرام ترسره کولو دپاره ه یی ډیري پیسی مصرفولی.
په کندهار کی هم همدغه چل روان و. انګلیسانو هڅه کوله چی دپو
پلزایی قبیله دبارکزیو په مقابل کی په جنګ واچوي. ولی داشغا ـ
لګرو داسرام ترسره نه شــو او پرخلاف دوي د دښمن په مقابل کی
هرمتحد شول. سیر زا احمدخان دسلی مبارزینو رهبري په غاړه درلوده
عطامحمدخان دابدالیانو، صمدخان او سیر علمخان د غلزیو ملی مشران
وو چی دانګلیس قواو پر ضد په کندهار کی جنګیدل. د زمین داور خلك
دتیري کوونکو پر خلاف راپورته شول. په پښین کی هم پرانګلیسی
پوځونو بریدو شو او دهغه خزانه یی پــه غنیمت یوړه، همدارنګه د
سپتمبر پــه میاشت کی د پکتیا په زاوه کی داشغالګرو پر ضد داورلمبی
پورته شوي، مکناټن پــه ډیره بیړه انګلیسی پوځ داولیو ر ، ابوتس،
اربورتن او اندرسن انګلیسی افسر انو تر قوماندی لاندی هغه خواته
ولیږل چی داکتوبر د میاشتی تر پنمایی پوری دوطن پرستانو سره
په جګړه کی وو. داشغالګرو پوځ بیله دي چی کوم بریتر لاسه ـ
کړي داکتوبر د میاشتی په ۱۷ نیټه ناکام کابل ته راوګرځیدل
(۱٦۸). په همدی یوخت کی دخیبرنه رانیولی ترکابل
پوری ی پښتانه داشغالګرو پر ضد راپورته شول او دلاروپه اوږ
دو کی به یی دانګلیسی پوځونو قافلی او کاروانونه په غنیمت

(۱٦۸) افغانستان در مسیر تاریخ ص-۵۳۵ - ۵۳٦.

بوول د ۱۸۴۱ م کال په نیمایی کی په کابل او د هغه په شا و خوا سیمو کی هم وضعیت خراب شو. خلکو په ځان او مال باندی ډاډ نه درلود. ملی مشران بد په ډیره لږه بدګمانی نیول کیدل او هندته به تبعیدیدل. مالیات د انګلیسانو د استعمار په کم وخت کی لوړ شول. فقر اسولو ډېر او رخ په ور رخ زیاتیده.

ماموړینو په بډو او رشوت اخستلو پیل وکړ او د هیواد په ټولو ساحو کی حالات پیچلی کیدل. موهن لال د برنس منشی چی د جاسوسی راپورونو د اخستلو او بیا برنس ته د هغوی د رسولو مکلفیت یی په غاړه درلود داسی وایی: مکناټن او برنس د هیواد له وضعیت څخه پوره خبر وو خو شخصی غرور او همدارنګه د دوی ترمنځ د هیواد د چارو په برخه کی نه توافق ددی سبب شول چی هغه بی اهمیته وګڼی او وخت له لاسه ورکړي. مکناټن چی په دي ورځو کی د بمبئی د والی په قررشوي و، نه یی غوښتل چی په دي پیښو سره خپل تګ ځنډ وي. برنس چی دده پر ځای د خپلی مقرري ارزو لرله نه یی غوښتل چی تر خپلی مقرري پوري څه اقدام وکړي. (۱۶۹).

داکتو بر د میاشتی په ونیته ملی مبارزینو په بتخاک کی د انګلیسانو په یو لښکر باندی یرغل وکړ. جنرال سیل د کابل نه د مبارزینو د دفع کولو د پاره هغه خواته ولاړ په لارو کی دد

---

(۱۶۹) په نولسمه پیړی کی افغانستان، ۱۷۲-۱۷۳ مخو نه.



٥ـ د شیر پـور زاړه کـلا

غه‌جنرال قواوی دغه‌ز یو دسخت مقاومت سره مخامخ شوی‌دی داکتوبر دمیاشتې په ۳۰ نیټه گندمک ته‌ورسیدل خو په‌خپله جنرال سیل هم‌دغه‌سفر ناموفق سامو ریت گڼلی‌دی. (۱۷۰)

څرنگه‌چی‌په افغانستان کی‌دیوه عمومی‌پاڅون څپی و رځ په و رځ راڼږدی کیدلی نو دافغانستان له‌دی پیښو سره دانگلیسا نو په اداری‌سیستم کی‌هم تغییرات راغلل. له یوی‌خوا جنرال الفنسټن په‌کابل کی دجنرال کاټن په‌عوض‌دانگلیسی پوځو نو دعمومی قوماندان‌په‌توگه‌مقرر شو ،له‌بلی‌خوا مکناټن په‌دی‌و رځو کی دزیاتو خدمتو نو په‌پاس دبمبئی و لایت چو کی ترلاسه کړه او غوښتل یی‌چی‌ډیر ژر دافغانستان دناارامی وضعی څخه‌خپلی پښی‌و باسی. په‌کندهار کی‌هم دانگلیسا نو سیاسی نماینده سرهنري رالنسن د میجرلیچ په‌ځای‌مقرر شو. و اقعیت داو چی حالات‌د استعمارچیانو دزیاتو مداخلو په ذریعه پیچلی کیدل او دافغانستان په‌گوټ‌گوټ کی‌د اشغالگرو پرضد دملی مبارزي سیلاب روان و. (۱۷۱)

د ۱۸۴۱م کال‌د نو امبر په‌لومړي نیټه‌دلومړي ځل دپارردادامین‌الله‌خان لوگري‌او عبدالله‌خان اڅکزي‌په مشری په‌یو مجلس کی‌د عمومی‌پاڅون طرح‌جوړه شوه‌چی په‌دی ملی مجلس کی‌محمدزمان‌خان درایو په‌اتفاق دملی‌مبارزینو دمشر په‌توگه او لوگري امین‌الله‌خان دهغه‌دنایب په‌صفت انتخاب شو. همدارنگه دجنگ‌اوسولی‌په‌خاطر

---

1—Louis Dupree, Afghanistan, P. 385. (۱۷۰)

(۱۷۱) په‌نولسمه‌پیړي کی افغانستان ، ۱۷۵ مخ .

دوولس کسیزه شورا تشکیل شوه چې د هغه اداره او مرکزیت د
شوربازار په یوه کوڅه کې موقعیت درلود. د نوموړو دوولسو
تنو مجلس د فیصلې سره سم په کابل کې د پاچا خون لمبې پورته شوې.
موهن لال لیکي: «نایب محمد شریف خان، تاج محمد خان او میرزا خان جوا-
نشیر ما ته ددې راپور راکړچې سبا به په انګلیسانو باندې حمله ویل
شي. ما فوراً دغه خبر برنس ته ورساوه، هغه وویل چې ویره مه کوه دل
غلط دي. باید قشلې ته ولاړ شو او وګورو چې څه ترتیبات به ونیول
شي. دا یې وویل، د قشلې خواته روان شو. په لار کې یو ملا لیک چې د
برنس په نوم او په مخفي امضاء په فارسي ژبه لیکل شوی وو چې هم دا
اطلاع یې رسوله، برنس ته ورکړ شو چې دغه لاندې جمله پکې لیکل
شوې وه: «هغه وخت راسیدلی دی چې نور دا هیواد پریږدی» (۱۷۲)
البته زیات عوامل وو چې د ۱۸۴۱م کال د نومبر د میاشتې د دوه-
یمې نیټې د پاچا خون سبب شول، خو محمد حیات خان په خپل کتاب حیات
افغاني کې د پاچا خون څلور علتونه په ګوته کوي:

«لومړی: د امیر دوست محمد خان نیول چې د هغه په سبب محمد اکبر-
خان او د امیر نور زامن نورو قومونو او قبایلو ته ورغلل او له
هغوی څخه یې د مرستې غوښتنه وکړه او په خپله د دغه نورو به
سر کې ودریدل.

دویم: ځینو خلکو ویل چې شاه شجاع عبدالله خان اڅکزی امین-
الله خان لوګری مهتر موسی خان، عزیز خان او محمد شاه خان غلزی

---

(۱۷۲) په نولسمه پیړی کې افغانستان، ۱۷۹ مخ.

مشران دده افغانانو اخوند ملاعزیز او د قوم نور مشران راغوښتي

او هغوي ته یې په ټینګه ویلي وچې انګلیسان غواړي تاسو هم ونیسي

او د امیر دوست محمدخان په شان مو له وطن څخه وشړي څنګه چې شاه

شجاع هیڅ واک او اختیار نه درلود نو ده بې وفایي وکړه . ځکه دی

له انګلیسانو څخه ناراضي او په دې پوهېدلی وچې انګلیسان غواړي

حکومت په خپل لاس کې وساتي او د دوی حکم جاري وي او دی

بوازې تش په نوم پاچا وي .

دریم : ځینو خودغرضو خلکو داسې تبلیغ کاوه چې انګلیسانو

حکم کړی دی چې ټولې سنګوټې او شیرینکوټې ښځې زاندل ته حاضرې

دي یعني هر څه چې یې زړه غواړي هغسې ژوند کولای شي . خو څنګه چې

افغانانو کې د ښځې داړول ازادي تر قتله هم ګرانه ده نو له دې امله

وارخطا شول .

څلورم : د انګلیسانو کمپونو ته د ښځو تګ او راتګ هم خلک په

غیرت راوستل او په هغوي کې یې له انګلیسانو سره د کرکې او نفرت

احساس راوپاراوه » . (۱۷۳)

شاید پورتني څلور علتونه د انګلیسانو پرضد په پاڅون کې تر

ډېره حده پورې ګټور وي خو د پښتنو یو عمده عامل د هېواد

اقتصادي بنیه وه ځکه انګلیسانو په دې وخت کې پر خلکو باندې لوړ مالیات

حواله کړل چې د اولس د ناراضي سبب شول . په «عین وخت کې

---

(۱۷۳) حیات افغاني، ۱۳۵-۱۳۶ مخونه .

نر خو نه‌دو سره لو ړشو ل چې د خلکو او ه یو اد نقر بی و رځ په‌و رځ زیاتاوه‌نو په‌دي تو گه‌د سیاسی آزادي په څنگ کی اقتصادي آزادي هم د خطر سره مخامخ شوه. بر سیره پر دي ده یو اد آزادي‌ داو لسو نو طبیعی حق‌ دي چې باید تر سره شي‌ چې بیا هم افغانانو د سلحشو ر رو حیې پر اساس ژ ر وکړای‌ شو ل چه‌ د غه‌ پر وسه‌ گړندی کړي .

## ب: د بر تا نو ی استعما ر ی لښکر له منځه تلل

د ۱۸۴۱ م کال‌ دنو امبر دمیاشتی په‌دو یمه نیټه‌ چې د ۱۲۵۷ کال در مضان ده میاشتی او ولسمی نیټی سره برابره وه ن. د رلو د ، په ټو ل افغا- نستان کی خلک دانگلیسانو پر ضد ر اپو رته شو ل. په کابل کی هم د ملی ر هبر انو د هدایت سر ه سم لو مړی د سر الکساندر بر نس د کابل و الی په کو رچې بالاحصار ته ر اکښته دا و سنی خر ابات کی پروت و تعرض درلو دیر غلو ر و ړه شو هن لال چې دا پیښی په خپله لیدلی و ي داسی لیکی : ( ز ه یی د ه و مچی نو کر د ر و ازه په شدت ټکولاو نار بی و هلی چی تاسی لاتر او سه و یده یاست او ښار چپه شوی دی زه باغ ته و و تلم ، و می لید ل چی هر ي خوا ته منډي او راسته یي دي بر نس ته می پیغام و لیږه مگر دی پخو اخبر شوی و . داو خت نایب محمد شر یف سړي ر ا و لیږه چی چنداو لیو محفوظ ځای دي ، پناه و ر و ړي ، خو بر نس و نه منله. نظام- الد و له هم بر نس ته و و یل چی له ده سره بالاحصار ته لاړ شي خو بر نس داهم قبو له نکړه ځکه چې دی داده و چې بر تانوي پوځ به‌ سو له‌ دي مشکل

څخه خلاص کړي.(۱۷۳) په هر حال کله چې برنس د خپل کور په مخ کې یو ګڼ شمیر ملي مبارزین چې د هغوی په رهبرۍ کې عبدالله خان اڅکزی امین الله خان لوګری، سکندرخان او عبدالسلام خان شامل وو ولیدل دستي یې خپل نوکر ملي مبارزینو ته وروالیږه چې د ټولنې علت معلوم کړي او په عین وخت کې یې دوی ته داډو رکړچې ستا- سو ټولو مطالباتو او غوښتنو ته به د همدردي په نظر وکتل شي. ولې داچې او لس پر د ښمنانو باندي بې حده پر قهر شوي وو، د برنس نوکر ته یې د خبرو تما مولو اجازه ورنه کړه او سکندرخان د تورې په یو ګوزار سر د هغه څخه سر پرې کړ. او لس د برنس د کور باغ ته ور داخل شو برنس هغه کوله چې د پیسو او بخشش له لارې خلک آرامه کړي. خو د دوی هڅو کوم ځای ونه نیو او د یرژر کپتان براډفت- - Charles Burnes. - چارلس برنس - Capt Broad foot. -
د برنس ورور او په خپله الکساندر برنس او د دوی د ساتو ګنځې ساتو- نکي د مبارزینو له خوا و ژل شول. د دوی مړي لال کور ته ور محاصره شو او د هغه د شهور جاسوس ونیول شو. خو محمد زمان خان دی له وژلو څخه خلاص کړ همدارنګه مبارزینو بیاد کپتان جانسن ( - Capt - Johnson. - ) په کور یرغل وکړ او د هغه خزانه چې د

(۱۷۳)، په نولسمه پیړۍ کې افغانستان، ۱۷۹- ۱۸۰ مخونه.

افغانانو په منځ کي يې دنفاق او ازا دي د روح و ژلو دپاره ذخيره کړي و ، تاله و اله کړه.(١٧٥)

بر يکيډير کمبل او ددې يو غنډ عسکر چې دپاځون په لومړيو شپيو کي دبرنس دخلاصون دپاره دبالاحصار دشاهي گارد دڅخه استخدام شوي وو دبالاحصار او برنس کور ترمنځ په او ږدو کي د ه بار زينو له خواتباه شول او دهغوي وسله د مبارزينو په لاس کي پريوته. جنرال الفنستن دبرتانوي قواو عمومي قوماندان دحملي دخبر سره سم دستي بر يگيډر شلټن دبرنس مرستي ته واستاوه. ولې داچي نوموړي دمبارزو يجار حالت وليد ددې پرځاي چې ښار ته داخل شي او يا په وخت دبرنس کومک ته ورسيږي، سيخ بالاحصار ته ولاړ. حال داچي که ښار ته داخل شوي واي د موضوع هن لال په قول شايد په موقع برنس ته رسيدلى واي او بيا ورته به غلي شوي واي.(١٧٦)

دپاځون په لومړيو رخ نه يواځي په کابل کي دانگليسانو پر ضد جگړي دوام درلود بلکي په کوهستان کي هم خلك داشغالگرو پرخلاف راپورته شول او يو غنډ لښکر يې دهغه دافسرانو په گډون ووژل.(١٧٧) په کابل کي دنو امير دمياشتي په دريمه نيټه ماي مبارزينو لومړي دنشان خان په کلاچي ددافغانانو او ښارترمنځ واقع وه او کپتان

---

(١٧٥)، په نولسمه پيړی کی افغانستان ، ١٨١-١٨٢ مخونه .

(١٧٦) پورتني کتاب ، هماغه مخونه .

(١٧٧) عبدالحي حبيبي، د افغانستان پيښليك، لومړي توك، کابل ١٣٦٣، ١٨٦ مخونه .

سيکنزي **Mackenzie.** - له خوا ساتل کېده، همدارنګه د وزير کلاچې په چارباغ کې يې موقعيت درلود او د کپتان تريور تر قوماندې لاندې اداره کېده، حمله وکړه چې له دوه ورځو مقاومت وروسته تسليم شول. په دې ډول دريو ورځو کې د کابل نظامي او اداري کنترول د انګليسانو له لاسه ووت.[178]

د دغه سختو پېښو په لړ کې جنرال سيل او د هغه پوځ د ګندمک څخه راوغوښتل شو- په خورد کابل کې انګليسي لښکر هم مرکزته راغی.

د نوامبر د مياشتې په څلورمه نېټه ملي مبارزينو د محمود خان په کلاچې په هغه کې د انګليسانو ګدام او خوراکه ذخيره شوې وه حمله يوړه او نيمې شپې پورې يې ونيوله. همدارنګه د انګليسانو پر غلو نه يې په لاهوري دروازه، شريف خان کلا، باغشاه کلا کې شنډ کړل. په وژدګو کې لفټننټ ماول او ويلر انګليسي افسران د خپلو لاس لاندې عسکرو له خوا ووژل شول. البته داهغه وخت و چې په ټول ملک کې د پاڅون ناره پورته شوې وه او په سلګونو ملي مبارزين د کوهستان، لوګر، وردګ، ميدان او د کابل نورو شاوخوا سيمو څخه د کابل پر لور راروان و. د نوامبر په پنځمه نېټه مبارزينو د کمسريت کلاچې د انګليسانو د خوار و بار مرکز و او اشغال کړو ته يې زيات اهميت درلود، ونيوله. وروسته يې د جعفر کلاو نيول شوه. لنډه دا چې د نوامبر د مياشتې تر اوومې نېټې پورې د ريکاباشي او ذو

---

(۱۷۸) په نولسمه پېړۍ کې افغانستان، ۱۸۳ مخ.

الفقار کلاگانو پرته نوری تولی کلاگانی دسبارزینولاس ته ورغلی. (۱۷۹)

د کابل ښار او د هغه شاوخوا سیمې اوس داسې ښکاري چي د اګرو دلاسه ازادي شوې وي. انګليسانو یوازې په بالاحصار او د بي بي مهرو په ستره قشله (چي د اوسني بي بي مهرو غونډۍ په لمنه کی ۱۰۰۰ په ۶۰۰ متر و کې آبادشوې وه) محدود او کلابند شول.

کابل په دې وخت کې د ډیر و سترو تاریخي پېښو ګرګټول کیده. شپیته کلن انګلیسي افسر جنرال الفنستین د برتانوي قوا و عمومي قوماندان چي د افغانانو د ازړور توب او نظامي مهارت و لیده، د نورو د نیاشتي په ۲۲ نیټه یې مکناټن ته وویل چي د افغانانو سردرو غې جوړي لاره ولټوي. البته دا هغه وخت وه چي سردار محمد اکبر خان د بخارا له دیاسیانو له لاري کابل ته راورسید او د ملي مبارزینو له خوا په ګرمۍ سره استقبال شو. د ملي مبارزینو په یوه غونډه کی نواب محمد زمان خان د خپلې مشرۍ حق سردار محمد اکبر خان ته پریښود چي د غونډې غړو له خوا هم په خوښۍ سره دا پیشنهاد تائید شو. د مدارنګه غونډې پریکړه وکړه چي د اشغالګرو په خوا نو پر خلاف جګړې ته پوره دوام ورکوي. (۱۸۰)

افغانې ټینګ او پراګنده لښکري چي عموماً د ښار دعادي او سیدو نکو کسبګرو، سوداګرو او نورو وطن پرستو عناصر و څخه جوړې

---

(۱۷۹) افغانستان در مسیر تاریخ، ص ۵۵۱. همدارنګه د پښتنو تاریخ، دویم جلد، ۱۶۵، ۱۶۸ مخونه.

(۱۸۰) په نولسمه پیړۍ کې افغانستان، ۱۸۵ مخ.

شوي وي. پر انګليسي منظمو پوځونو ئې بري وموند. چې دغه

بري د جنرال سيل شځې چې په خپله د جګړي کتونکې وه هم تائيد کړي

دي. نوموړې د اسې ليکي: «دښمن په ګړندیتوب سره وخوځېده زموږ

لښکر ددوی په مخکې داسې ښه او هلې لکه د پسونو رمه په کوم

پسې چې ليوه مخه کړې وي». (۱۸۱)

د ۱۸۴۱ م کال د مني پانو د ژيړيدو سره سم د انګليسانو ښه هم

په افغانستان کې سخ په زيړيدوو او د اشغالګرو وضعيت بحراني معلوميده

خو بيا هم سکناټن په خپله تيـو له چالاکی سره هڅه کوله چې د افغانستان

وضعه د پيسو ـ رشوت ـ نفاق او ترور له لارې سم او عادي کاندي.

د همدغه سياسي وژنې د متو د پر اساس د عبدالله خان اڅکزي پر شاګولی

وچلول شوی او شهيد شو، همدارنګه د وطن پرستانو مشهور رهبر

مير مسجدي خان پټه د ناروغی په بستر کې زهر ورکړل شول او وزير

محمد اکبر خان په جلال آباد کې په ګولی وويشتل شو، مګر بيا هم انګليسا۔

نو د تباهی نه يې مخنيوی ونه کړی شو. (۱۸۲)

د ۱۸۴۱ م کال د دسمبر په يو لسمه نيټه مکناټن مجبور شو چې د افغا۔

نستان څخه د انګليسي پوځونو د تلو موافقه لاسليک کړي په دې توګه:

۱ ـ د انګليسانو او افغانانو دوستی بايد په اشخاصو پورې مربوطه وي

---

(۱۸۱)، انګلستان د افغانستان پر ضد د تاريخ پاڼی، ۱۷ مخ.

(۱۸۲) پورتنی کتاب، ۷۳ مخ

لکه‌شاه شجاع چی دانګلیسانو دوست او دافغانانو دښمن دی ـ بلکی باید دولتی‌وی .

۲ـ ذکر شوی شاه که له افغانستان څخه وتلو ته مجبور شی نو په هغه صورت کی که ده ته ځانی یا مالی خطر و رسیږی ـ دانګلیسانو مداخله به پکی نه‌وی .

۳ـ دانګلیسانو پوځونه دی دافغانستان څخه ووځی او بی له افغانستان دحکومت له خواهشه دی چی هغه به هم د پردی دښمن ددفع کولو دپاره‌وی ـ بیا افغانستان ته رانه‌شی او په هغه صورت کی بی هم باید دهغوی خرڅ په خپله غاړه وی . یو ازی‌وا به او بوس به افغانستان دنقدو پیسو په بدل کی ورکوی .

۴ـ تجارت هم ددواړو هیوادو ترمنځ دافغانستان په غوښتنه او رضا پوری اړه‌لری .

۵ـ دافغانستان هغه خلک وته چی دحکومت مخالف‌وی، انګلیسان باید هند ته دداخلیدو اجازه‌ورنه کړی . همدا رنګه معاش دی‌ورته‌نه‌ورکوی .

۶ـ که تزاری روس او یا نور هیوادونه دافغانستان له لاری په هند باندی د حملی خیال او اراده وکړی، انګلیسان دی افغانستان ته وسله او نقدی پیسی ورکړی چی افغانان په خپله هغه دښمن وتمبوی او مخه یی‌ونیسی .

-۷اوس به د انګلیسانو پوځونو ته اذوقه د نغدو پیسو په واسطه تهیه شي، خو انګلیسي پوځونه باید په دریو ورځو کې له کابل نه ووځي. (۱۸۳)

دغه قرارداد د ګاټن لخوا امضاء شو. او په همدغه ورځ یو څه استعمله جبه خانه او وسله سره د دوو جنګي کلاګانو دریکا او ذو لفقار په نوم چې لاتراوسه د انګلیسانو په لاس کې وي، د ۵۰۱ هندي ونو غلي په بدل کې افغانانو ته تسلیم کړي شوي. همدارنګه انګلیسانو شپږ تنه غټ انګلیسي افسران د ګروپه توګه افغاني لوري ته ورکړل. د دسمبر د میاشتي په ۱۳ نیټه سردار سلطان احمد خان وکړای شو چې د انګلیسي پوځونو په الاحصار کې پاته برخه د بي بي مهرو ستریچو نې ته ورسوي. همدارنګه یو څه خوراکه هم انګلیسانو ته ورسیده. شاه شجاع د دسمبر د میاشتي په ۱۴ مه نیټه هند ته د تللو څخه انکار وکړ او ملي پاخون یې د انګلیسانو په مقابل کې اعلام کړ. دسیل ښځه په دي برخه کې داسي وایي «شاه شجاع نه یوازي انګلیسانو سره هند ته تګ نه غوښتل بلکي د خلکو مخکښانو ته د انګلیسانو پرضد تحریکوي»
(۱۸۴)

داچې انګلیسي پوځونو ته خوراکه ورسیده او د الاحصار پوځ هم د بي بي مهرو په ستره چونې کې ور سره یو ځای شو، همدارنګه د

---

(۱۸۳) سید قاسم رښتیا، په نولسمه پیړۍ کې افغانستان، ۱۸۷-۱۸۸ مخونه.

(۱۸۴) افغانستان در مسیر تاریخ، ص ۵۵۶.

غزنی لەخوا د سرستی رسیدلو خبر مکناتین لاپسی زړو رکړاو دعهد

ماتولو پەخیال کیشو. ددیدپارەچیوختیی پیدا کړیو ی او تنگ

وځنهو ی، پەسیاسی چلول یی لاس پور ی کړله یوی خوا سو هن لال

داستخبار اتو مسئول او دمکناتین نمایندەداو لس تر سنځ دنفاق او ربلاوه

اود بلی خوا مکناتین دسرورخان لو هانی پەذریعه دسردار محمد

اکبر خان سرەدلیدنی او کتنی خواهش وکړ هغه و یل کەچیری سردار

وغواړي وزارت حتیٰ د افغانستان سلطنت بەورته ورکړشی .

سردار محمد اکبر خان هم ددی دپاره چی ددښمن پلان او نقشه یی

ځانته معلومه کړیوی محمدصادق خان دسردار سلطان احمدخان

وروړد کپتان سکنر انگلیسی افسر سره قشلی ته واستاوه. مکناتین

نوموړی ته دیوەنوي تړون مسوده پەدی توگه تقدیم کړه :

۱ـ پەختیځ کی له بولان نه تر خیبره پوري لویدیځ لو رته دشاه

شجاع دفرمان لاندي سیموو زارت بەسردار محمد اکبرخان ته سپارل کیږي .

۲ـ امیر دوست محمد خان بەپەسلامتی سره کابل ته راوستل شی.

دفیصلی وروسته پلار او یاد هغه زوي وزارت واخلی

۳ـ کله چی دافغانستان وضعیت معلوم شی بیا بەانگلیسان مداخله نه

کوي .

۴ـ اوس بە یو ملیون دوه سوه زره روپی سردار محمد اکبر خان ته

ورکړي او پەراتلونکی کی بەدەته هر کال دوه سوه زره روپی معاش

ورکول کیږي .

۵- او لس دي محمد اکبر خان او نایب امین الله خان لوګري و نیسي او انګلیسانو ته تسلیم کړي- همدارنګه نور سلیمشران دي د کابل نه خوارهوارهکړي شي. (۱۸۵)

محمد اکبر خان چې د دښمن دغه د وهسځې او وعدي ماتول او لیدل او دا يي پوره درك کړه چې اشغالګر پو څونه په مسالمت امیزه توګه افغانستان نه پر یږدي نو ددي د پاره چې کوم سندیي ترلاسه کړي و ي او بیا يي نورو سلیمشرانو ته په ګوته کړي و ي یا يي محمد صادق خان (په يو قول سردار سلطان احمد خان دده مشر ورور) ورولیږه. نوهن لال په دي برخه کې داسي لیکي: «سکناټن په مجمل ډول لیکل: که ته هغه څه چې تا ته سپارل شوي دي وکړي هغه وخت سکناټن به هغه وعدي چې له تا سره شوي دي تا ته دانعام په توګه درکړي شي». سکناټن ددي د پاره چې خپل ښه نیت او ر وادار ي يي سردار ته ښودلی و ي، یوه ګاډي او یوه تفنګچه يي د یادګار په توګه ورکړل. محمد اکبر خان دغه ټول جریان د سلیمشرانو سره په یوه غونډه کې څرګند کړه او د سکناټن دعهد ماتولو اسناد يي ټولو ته وښودل چې ورو سته بیا د رایو په اتفاق دا پریکړه وشوه چې سکناټن او دهغه یاران یوازي په هغه او دغه وخت تیرو ي تر څو چې د جلال آباد او غزني نه ورته سرسته راورسیږي او سربیره پردي اشغالګران غواړي چې د سلیمشرانو ترمنځ نفاق واچوي او بیا هغه څه د سلي جنبش د خپه کولو د پاره استفاده وکړي او خپل حاکمیت

---

(۱۸۵) په نولسمه پیړۍ کې افغانستان، ۱۸۹ مخ. همدارنګه افغانستان در مسیر تاریخ، ص ۵۵۷.

په افغاني اولس باندې وساتي. ملي مشرانو سردار محمد اکبر خان ته اجازه ورکړه، څنګه چې لازمه ګڼي، دښمن دې غافل کړي او پیادې ورته خپل خیانت جزا ورکړي. د همدغه خبرو اترو په جریان کې د دسمبر د میاشتې په دوه ویشتمه نیټه موافقه وشوه چې د دواړو لورو مشران دې د ۱۸۴۱ م کال د دسمبر په درویشتمه نیټه د بي بي مهرو ستري چوني ته نږدې په یوه کوم ځای کې سره وګوري. موهن لال ددې تاریخي ورځې په باره کې داسې لیکي: د همدې ورځې په شپه انګلیسي منصبدارانو لکه تریور، مکنزي او لارنس مکناټن ته داسې مشوره ورکړه چې خپله په دې غونډه کې حاضر نه شي چې خطره ورته نه رسیږي، خو مکناټن و نه منله او په ځواب کې یې ورته وویل: تاسو وایئ چې خطر دی - البته چې خطر دی خو که کامیاب شم له ټولو خطرونو څخه به نجات پیدا کړو. (۱۸۶)

د وعدې سره سم د ۱۸۴۱ م کال د دسمبر د میاشتې په درویشتمه نیټه مکناټن د تریور، لارنس او مکنزي په ملګرتیا په داسې حال کې چې د انګلیسانو دوه کنډکه پلي عسکر او دوه توپونه ددې د پاره تیار سي وو چې که چیرې له اکبر خان غازي سره موافقه ونه شوه نو دا دوه کنډکه باید د ملي مشرانو د نیولو د پاره استعمال شي. په ټاکلي وخت د بي بي مهرو ستري چوني ته نږدې په یوه کوچني غونډي کې د مکناټن او اکبر خان لیدنه وشوه چې د خبرو اترو وروسته د انګلیسي اردو ګاه د مخې داغ او ډوب ږغ پورته شو او اکبر خان په خپله تفنګچې سره

مکناټن و و اژه. کپتان ترېو ر هم دمقاو مت په جر یسان کـی و و ژل شو. کپتان مکنز ي او لارنس دیر غمل په توګه بو تلل شول. (۱۸۷)
اشغالګرو ددي عمده الهام ښېو نکې و ژنې په ذریعه په کلي توګه خپله روحیه بایلو ده او دي ته مجبور شول چې افغانستان پریږدي.
اکبر خان دافغانانو لښکرو ملي رهبر انګلیسي تیر کوونکو ته دا لاندي شرایط وړاندي کړل:
۱- دافغانستان دستي خالي کول.
۲- انګلیسي پوځونه یوازې شپږ توپونه له ځان سره وړای شي - نورټول توپخانه باید تسلیم شي
۳ - دانګلیسانو ټول لي مشرانو دفاميلو نو په ګډون باید د افغانانو سره دامیر دوست محمدخان تر راتګ پوري د ګروو په توګه پاتې شي
۴ - پاتې يو ملیون ځلو رسوه زره روپۍ چې مکناټن منلې دي، باید افغانانو ته ور کړي شي.
۵- جبه خانه او نور هغه سامان چې درانه وي -افغانانو ته دي تسلیم کړي.(۱۸۸)
دغه شرایط چې ددسمبر په ۲۴ نیټه ديو يغو نړۍ په ترڅ کې د ملي پاڅون دشو راد غړو له خوا تصویب شول، دستي په کابل کې د انګلیسي نمایندګانو ته ورولیږل شول. پاتنجر چې او س يې دمکناټن

(۱۸۸)، په نو لسمه پیړی کې افغانستان، ۹۵ مخ.

په ځای د سیاسي چارو واک په لاس کې درلود او جنرال الفنسټن
د برتانوي قواو عمومي قوماندان دستي یوه نظامي غونډه تشکیل کړه
او د افغانانو دغه وړاندې شرایط دستي ومنل شول. او جنرال الفنسټن
د ۱۸۴۱ م کال د دسمبر په شپږمه نیټه د انګلیسي پوځونو د پوره
تسلیمیدو او وسلو د ورکولو او د پېښور له لارې بیرته برتانوي
هند ته د ستنیدو موافقه لاسلیک کړه. په مقابل کې بیا هم افغاني مشرانو
وعده وکړه چې انګلیسي پوځونو ته به د وتلو په حال کې اسانتیاوې
برابروي او د لارو په اوږدو کې به د دوی امنیت تامینوي. د تړون
سره سم د کابل د تخلیه کولو د پاره د جنوري د میاشتې شپږمه نیټه
ټاکل شوې وه. همدارنګه د تړون پر اساس انګلیسي غټ افسران
لکه کنولي، والش، ډرمونډ، ویب، ایري او واربرټن، هنري
او تروپ د خپل کور او فامیل سره د یرغمل په توګه د افغانانو په قبضه کې
پاتې شول او د محمد زمان خان په کور کې ځای ورکړ شو. (۱۸۹).

انګلیسانو د تړون سره سم د جنوري د میاشتې په شپږمه نیټه د تخلیې
کار پیل کړ. په لومړي ورځ څلور زره پنځه سوه تنه (۴۵۰۰) انګلیسي
پوځ د دوی توپونو سره د جنرال الفنسټن په مشرۍ په ډیر سخت ژمي کې

---

(۱۸۹) افغانستان په ۱۹ پیړۍ کې، ۱۹۵ مخ. همدارنګه قاضي عطاالله خان
د پښتنو تاریخ، دویم جلد، ۲۲۲ مخ.

چې تقريباً شپږ انچه و او ره هم د سکې په سخ پر ته وه د جلال اباد خوا ته
حر کت وکړ. خو کله چې افغاني لښکر انو و ليدل چې انګليسانو دو عدي
پرخلاف بيا دو هم ځل پيل کړي ده او غواړي چې خپله دراندې جبه خانه او
توپونه له ځان سره يوسي نو له دي کبله سردار سلطان احمد خان،
سردار محمد اکبر خان او محمد شاه خان چې انګليسانو سره په ډرګه وو، د هغوي
له حمايت نه لاس واخيست او همدا وخت و چې سپاره زينو او افغان
اولس د هغه قهر او کينې له مخې چې د تيري کونکو په مقابل کې يې
درلود، په هغوي يرغل ونه پيل کړل او دکابل او جلال آباد ترمنځ د
لاروپه اوږدو کې انګليسي پوځونه او د هغوي افسران يو پر بل
پسې د سپاره زينو له خوا تباه شول. يوازې سردار محمد اکبر خان دا فغان
اولس ملي لښکر و کړای شول چې يوزوږ جنرال الفنسټن او د هغه
ښځې او ماشومان تر خپلې ساتنې لاندې جلال آباد ته سالم ورسوي خو
په دې وخت کې جنرال ايلفنسټن هم د ۱۸۴۲ م کال د اپريل
د مياشتې په ۲۴ نيټه دشپې په اوه بجو د جلال اباد په لاره کې د خپلې
ناروغۍ او زوړوالي او ستومانۍ په سبب مړ شو. خلور زره پنځه سوه
تنه جنګيالي، دولس زره ملازمين ياد پوځ په اصطلاح کمپ فالور ز
چې تول تقريباً شپارس زره پنځه سوه تنه کيدل ټول له منځه ولاړل.
له دې ځخه يوبرايدن هغه همسري ستومانه او شکيدلی کالی
ژوندی جلال اباد ته ورسيد. (۱۹۰)

(۱۹۰) قاضي عطاالله خان، د پښتنو تاريخ دويم جلد، ۳۲۲-۵۵۲ مخونه.

شاه شجاع هم د ۱۸۴۲ م کال د اپریل د میاشتې په ۳ نیټه د نواب محمد
زمان خان زوی شجاع الدوله په ذریعه چې د امیر دوست محمد خان د پلویانو
څخه و، د خپلو خائینانه عملونو په سزا ورسیده په دغه جریان کې
نه یوازې کابل د اشغالګرو پوځونو څخه پاک او ازاد شو بلکې په
غزني او کندهار کې هم د انګلیسانو پر ضد شورشونه منځ ته راغلل
د حیرانتیا خبره داده چې صفدر جنګ د شاه شجاع زوی هم په کندهار
کې د جنرال ناټ د لښکرو سره وجنګیده، خو ماته یې وخوړه. (۱۹۱)

---

(۱۹۱) محمد حیا الخان، حیات افغاني، ۱۳۱ مخ

# اتم فصل

## الف : دبرتانوي استعمار چیانو دبا یللی پرستیږ د ګټلو د پاره بیا هلی ځلی

د ۱۸۴۲ م کال د جنوري د میاشتی په ۳۰ نیټه د برتانوي هندګو-رنر جنرال لارد اکلیند ته خبر ورسید چی انګیسي پوځونه د کابل نه د شاتګ په وخت کی بالکل تباه شوي دي . د دي خبر په رسیدو-سره نو سوري لارد سمدستی هڅه وکړه چی د ماتی او وازي کمي-کړي ځکه چی په ختیځ کی د استعمار چیانو د پاره دغه نظامی او-سیاسی شکست خه ساده خبره نه وه . لارد اکلیند د دي تو لو کو ښښو سره سره بیا هم ډیر ژر تبدیل شو او پر ځاي یی د ۱۸۴۲ م کال د فبروری په میاشت کی لارد ایلنبرو (Lord Ellenborogh) (۱۸۲ - ۱۸۴۴ م) مقرر شو . دغه لارد هڅه وکړه تر څو هغه معنوي تاوان چی په ختیځ کی د انګلستان و امپراتوري ته رسیدلی دي، تلافی کړي همدارنګه هغه پاته -

شوي پوځونو ته چې لاتر اوسه په افغانستا ن کې په جګړه بوخت دي ،نجات و رکړي ( ۱۹۲ ) .

برتانوي پاتې پوځونه په جلال اباد او کند شار کې دسختې محاصرې لاندې وو - او هندته دو تلو جرأت یې نه درلود ، دوی چاریدل چې پر دوی باندې به هم د تللو په حال کې د کابل - دانګلیس پوځونو کانه وشي.

دوست محمد خان چې لاتر اوسه دتبعید په حال شپې سبا کولې ، د برتانوي هندګورنر جنرال له خواد خبر و د پاره کلکتې ته وغوښتل شو. دخبرو په نتیجه کې دوست محمدخان ته اجازه ورکړې شوه چې خپل وطن ته ستون شي او بیرته د کابل د سلطنت پر تخت کښیني خو په دې شرط چې لومړي خپل زوی سردار محمد اکبرخان ته لیک واستوي چې کابل ته دانګلیس پوځونو د موقتي اوتش په نوم داخلیدو او مارش کولو مخه ونه نیسي - کوم ی انګیسانو د خپل اعتبار او پرستیږ دبیرته راژوندي کولو دپاره ضروري ګڼل ( ۱۹۳ )

سردار محمد اکبرخان د ۱۸۴۲ م کال دمارچ په میاشت کې د خپل پلار لیک ترلاسه کړ او دملي مبارزینو له موافقې نه وروـ

---

( ۱۹۲ ) ،انګلیستان د افغانستان پرضد د تاریخ پاڼي، - ۷۸ - ۷۹ مخونه .

( ۱۹۳ ) ، افغانستان درمسیر تاریخ ، ۵۶۶ مخ .

سته د بامیان خواته ولاړ همدارنګه په زرګونو سبارزین چی په
افغانستان کی د پاتی برتانوي استعمارچیانو د تکولو د پاره په
په جلال آباد ، خیبر، کندهاراونورو ځایو کی راټول شوي وو ،د
ملی رهبرانو په هدایت تیت او پر اګنده شول . دهغی وروسته
د ۱۸۴۲ م کال داګست دمیاشتی په نهمه نیټه جنرال ناټ او شهزاده
تیمور د کندهارنه دجنرال پالک او سیل پوځونه دجلال آباد نه د
اګست دمیاشتی په شلمه نیټه د کابل خواته حرکت وکړ . او د
سپتمبر د میاشتی په نیما یی کی دغه دواړه پوځونه په کابل
کی سره یو ځای شول داچی دښار ټول خلک دانګلیسانو د بیا راتګ
او تش په نوم سارش څخه خبر وو ،انګلیسی پوځونه دجګړي پرته
ښار ته ننوتل او دهغوي دپوځونو یوه برخه د جنرال میکسکل
ترقوماندي لاندي داستالیف خواته ولاړه . په هغه ځای کی یی
ډیر بی ګناه خلک دتیغ څخه تیر کړل او ښځی ځایونه یی وسوځول . په کابل کی هم برتانوي یرغلګر په چوراو چپاول
لاس پوري کړ او زیات کورونه دانګلتس نظامیګرو په ذریعه
لوټ کړي شول . د کابل د ښار د چارسو په شاو خوا بر خو کی یی
اکثره ښکلی تغمیرونه وسوځول . داچی انګلیسی ئیري کوونکو ته
دافغانانو له خوا کلک تاریخی ګوزارورکړل شوي وو دوي
بیاددي جرات نه درلود چی په افغانستان کی پاتی شی همغه وه
چی برتانوی استعمارچیان داکتوبر په لومړیو ورځو کی
دجلال آباد خواته ولاړل او داکتوبر د میاشتی په ۳۲ نیټه جلال

آمادته و رسیدل . یوه ورځ و روسته یې د جلال آباد ښار و سوځاوه (۱۹۴) فتح جنگ د شاه شجاع زوي چې دا نگلیسانو د موقتي دوه د ریو سیاستو په سوده کې د کابل پاچاهې پر تخت ناست و ، دانگلیسانو سره یوځاي دافغنستان څخه ووتاو او پرځاي یې شاه پور دشاه شجاع کوچنی زوي پاچا شو. خو. کله چې دانگریسانو تر وتلو وروسته محمد اکبر خان د شمالي سیمو څخه کابل ته راغی ، دغه شهزاده هم له تخت څخه و شړل شو (۱۹۵) .

ف انگلس هم په خپل اثر کې د برتانوي استعمار چیانو دهغه وحشیگریو او چوراو چپاول څخه یادونه کوي کوم چې د ۱۸۴۲ م کال په منی کې د جنرال سیل - جنرال پالك او جنرال ناټ پوځونو له خوا د افغانستان د بې گناه خلکو په مقابل کې شوي دي . (۱۹٦)

امیر دوست محمد خان د ۱۸۴۳ م کال په لوسړیو ورځو کې د پیښور له لاري وطن ته راغی او په خیبر کې د وزیر محمد اکبر خان ، نواب عبد الجبار خان ، نواب محمد زمان خان او سردار سلطان احمد خان له خوا ورته هرکلی وویل شو. او د دریو

---

(۱۹۴) قاضي عطاالله خان ، د پښتنو تاریخ ،
، دویم جلد ، ۳۰۳ . ۳۰٦ مخونه

(۱۹۵) پورتنی کتاب ، پورتني مخونه .

(۱۹٦) ف انگلس ، افغانستان ، کابل ، ترجمه گل آقا ، ۹۱ مخ

کالو او وخلورو سیاشتو وروسته یې بیاد افغانستان دچارو واگی دوزیرمحمداکبرخان په زورتر لاسه کړ همدارنگه کندل خان‌او دامیر نور ښارکزي کندهاري وروڼه هم کندهارته راغلل او صفدرجنګ دشاه شجاع زوي چې دخپل وروتیمورو روسته‌دکندهارحاکم و. هندوستان ته وتښتیده همدغسې یارمحمد خان الکوزي دهرات دچار وواگی په‌خپل لاس کې واخیستی. (۱۹۷) په دې توګه دانګلیسانو داستعمارګر حکومت ټول‌هغه کوښښونه اوهڅې‌عبث شوي - چې دافغانستان د نیولو او حلقه‌به‌ګوش‌کولو د پاره یې په سرکې درلودلې. برسیره‌پر دي چې‌برتانوي استعمارچیان په‌خپل مرام‌ته ونه رسیدل - په‌دې لاره کې یې نهایت زیات ځانی او مالی تاوانونه هم ورکړل. دهند ددولت رسمی نشرات دافغانستان‌دلو مړي‌جګړې تلفات ۱۵ زره عسکر - ۵۰ زره او ښان - ۲۰۲۱۷ میلونه‌پونډ څرګند وي (۱۹۸).

دافغان‌او انګلیس لومړي جګړه چې دانګلیس استعمارګر حکومت په کلي ماتې سره پای ته ورسیده، د افغان اولس دهغه‌قهرمانه مبارزو محصول وچې داشغالګرو پرضدیې‌د ۱۸۳۹ - ۱۸۴۲ م کلو په اوږدو کې‌ترسره کړي.

---

(۱۹۷) سیدقاسم رښتیا، په نولسمه پیړي کی‌افغانستان، ۱۲۱ - ۲۲۲ مخونه همدارنګه جیبی، تاریخ مختصرافغانستان، ۳۱۱ مخ.

(۱۹۸) سید قاسم رښتیا، په نولسمه پیړي کی‌افغانستان، ۱۱۹ مخ.

# نتیجه

د۱۷۹۳ م کال په پیل سره هغه دو ره ختمه شوه چې ار و پا یی هیو اد و به مستقیماً د افغانستان په چار و کی مداخله نه کو له د همدې تا ریخ نه و ر وسته منځنی اسیا دستر و ار و پا یی هیو ادو د رقا بت ډ گر و گر ځید ه.

فر انسو یانو انگلیسانو او ر وسانو هر یو ه د تهر ان د ر با ر تـه لا ر ه پیدا کړ ه تر څو د ایر ان دو ستی تر لاسه کړي . مګر ډ یر ژ ر په تهـر ان کـی د ناپلیو ن د مانو ر و نو په ذر یعه او پر هـندباندې د شاه ز مـان د یر غل تهدید همدا ر نګه په منځنی اسیا کی د تز اری ر و سیـې د پر اخـتیا غو ښتنو د سیسو سر ه حالات پیچلي او کړ کیچن شو ل .

شاه ز مان په ۹۸ - ۱۷۸۹۹ م کلو نو په پنجـا ب کی ډ هلـی ته د ـ تګ د تیا ري نیـو لو په حال کی و ځکه چـې د هند د مخـتلـفو محلي ـ حکمر انانو له خو او ر ته بلنه و ر کړ ای شوه او د مادي او معـنو همکار یو و عده یې و ر سره و کړ ه تر څو ګـډ د ښـمن ـ انګلیسان د هنـد څـخـه و بـاسـي . و لی ډ یر ژ ر د ده د افغانیتو نه د د ښمن په ـ دسیسه کو لو سر ه د ایر ان پاچا په و اسطه شنـډ شو ل او ایـر انیـانو په خر اسان باندي تیري و کړ او شاه ز مان په ډ یره بیړ ه د هند څخه ر او ګر ـ ځیدنه یو ازي د شاه ز مان په مخه کی یی هند ته د تللو په لا ر ه کـی

خنهو نه پیدا کړل بلکې داحمد شاه د زیات‌شمیر لمسیانو په منځ کې
کې یې داسې دنفاق تخم و شیند ه‌چې د هغه په‌و اسطه ددر انیانو ـ
پراخه ا سپراتو ري هم ټو ټه ټو ټه شوه‌او په افغانستان کې‌د یوي
او ږدي‌مو دي دپاره انا ر شیسم منځ ته راغی دد اخلي د او مداره
شخړ و په‌په‌نتیجه کې مر کزي‌قدر ت‌هم‌دسدو ز یو څخه ‌بار کزیو ته
انتقال شو او دوست محـمد خان په خپلو نه ستړي کید و نکو
هڅو سره‌و کړ اي شو ل‌چې افغا نستان دپو ره تجز یې ا و ټو ټ
کو لو څخه وساتي .

ر نجیت سنګ چې دشا ه‌ز مان‌له خو ادپنجاب حا کم مقر رشوي ـ
و ،دافغان دو لت د کمز و رتیا په و خت کې لو مړي ازادي‌و ا
خستله او دستلج در یاب په شمال غر بي سیمه کې‌یې دیو ه‌پیا
و ړي سلطنت اساس کیښ‌ښو د او و ر و سته بیا دا نګلیس‌ددو ستی او ـ
او تشو یق په صو رت کې یې د افغانستان ختیځ و لایتو نه یو پر ـ
پر بل پسې جـلا کـړ ل .

کند ها ر او هر ات هم په‌دي‌و خت کې‌دمر کز څخه‌جلااداره کیدل.
په کندشار کې ا ر کزي کند ها ري‌و ر و نړواو په هر ات کې کـامر ان
دشاه‌محمو د ز و ي‌حکو مت‌در لو داو دو ست‌محمدخان په‌یوه کـو چـنی
قلمر وباندي‌حکومت کاو ه.خو دیادو لو و ړده‌چـې‌امیر په‌دي‌پو هـیده
چې‌څنګه‌بر تانیه‌دتز ا ري‌روس‌او همدا رنګه‌تز اري‌ر و س‌د بر تـانیې
پر خلاف استعمال کړي .

د پیښو ریبرته راګرځول دامیر ستر ارزو وه. امیر په ۱۸۳۶م
کال کی لارډ اکلینډته دنوي عهدي د مبارکی په ترڅ کی د هغه توجه
دافغانانو سکانو مسئلو ته راوګرځوله او په دغه لیك کی یی دانګلس
سرسته وغوښتله. خو لارډ اکلینډ په هغه لیك کی چی دامیر په نوم یی
رالیږلی وه، ویل شوي وه چی د برتانیی د پاره سها راجه رنجیت سنګ یو وفادار
اردوست ګڼل کیږي. د برتانیی ارزو داده چی تاسو دواړه خپلی
مسئلی د دوستی له لاري حل و فصل کړي. مګر په اقتصادي مسائلو کی
به ډیر ژر د برتانیی استازی کابل ته د رشی.

امیر دانګلیس له خوا په دغه لیك اخستلو سره سما یوس او نا امید شو
او په دي پوه شو چی برتانیه دده په نسبت د رنجیت سنګ دوستی ته ترجیح
ورکوي. امیر د برتانی دو ضعیت د تغییر د پاره په سیاسی چلو ل لاس
پورې کړاو دایران پاچا او د روس تزار ته یی هم لیکونه واستول
مګر هغه خو ایو نه چی دایران پاچا او د روس تزار نه امیر ته و رسیدل
کوم قطعی او واضح ځوابونه نه وو او یوازی د افغانستان سره د دغه
هیوادو همدردي یی ښکاره کوله.

دانګلیس دولت کابل ته دسر الکساندر برنس د را لیږلو تصمیم و نیو
او دغه نماینده ته په کابل کی په لوړو شاند ار مسراسمو سره هر کلی
وویل شو او ډیر ژر یی دامیر سره خبري پیل کړي او دامیر دوست
محمد خان یی دایران او روس څخه په لري والی اود انګلیس سره په نژدیوالی
تشویق کړ. مګر داچی امیر دوست محمد خان د پیښو ربیرته اخستل

او دسکانو دخطر دفع کول دانګليس سره ددغه اتحاد اساسي شرطباله،
د برنس سره کوسي خاصي نتيجي ته و نه رسيده برنس لا په کابل کي و چي
دتزار نمايندهو يتکيو يچ هم کابل ته راغي او په همدي وخت کي
دهرات کلا بندي هم دايرانيانو له خوا روانه وه. دهرات ستراتيژ يک
موقف او هغه لاري چي دهرات څخه ايران، کندهار، کابل، او برتانوي
هندته تير يدلي، انګليسي واکمنو ته خاص اهميت درلود. د برنس ناکامي
او دتزار هيئت کابل ته راتګ لار دا کاليندسخت عصباني کړ او تصميم
يي ونيو چي شاه شجاع سره کومک و کړي او هغه پر تخت کښينو ي-
ځکه دوي فکر کاوه چي شاه شجاع د انګليسانو جيره خوار دي او د
انګليسانو د پاره به ستحد کيداي شي. له بلي خوانه الکساندر برنس او
کپتان و يدداسي پېشبيني کړه چي شاه شجاع به په افغانستان کي استقبال
شي. لنډه دا چي دلار دا کليند نقشه په دي ډول وه چي د سند او بلوچستان
له لاري کندهار -او له هغه ځايه هرات ته د محاصره او کلابندي د
لري کولو د پاره لښکر کشي وکړي. سره له دي چي د هرات محاصره
لا پخوا په خپله دافغانانو په سرشندني سره ماته شوي وه. خو دوي بيا
هم د روس د هيئت راتګ يوه بهانه و ګرځوله او د بارکزيو سردارا-
نو سره يي علايق و شکول او د ۱۸۳۸ م کال دا کتوبر د مياشتي په
لومړي نيټه يي دسملي د جنګ اعلاميه دافغانستان پر ضد خپره کړه. دغه
اسناد يي په ټول هنداو افغانستان کي تيت کړل او د هنداو انګليستان
په ورځپانو کي هم نشر شول. دغه اعلاميه په ساده ډول د کابل او
کندهار واکمنو پر خلاف يوه دجنګ اعلاميه نه وه بلکي دانګليس

سیاست یی په افغانستان ـ ایران او منځنی اسیا کی بیانو ه. انګلیسانو ۱۸۳۸ م کال د جون د سیاشتی د ۲۶ نیټی ترون له مخی پر افغانستان باندي تجاوز پیل کړاو د ۱۸۳۹ م کال داګست د میاشتی په ۷ نیټه یی شاه شجاع د دوه یم ځل د پاره له ۳ کلونو وروسته پر تخت کښیناوه.

دانګلیسانو د غه عمل چی افغانستان یی لاندي کړ، دافغانانو لـه د طبیعت او ارمانو نو سره هیڅ توافق نه درلود. امیر دوست محمد خان انګلیسي مقاماتو ته تسلیم کړاو کلکتی ته ولیږل شو. ولی دا سیمه په تګ سره دوطنپالو ځواکونو سره ز ملاپسی پېښاوري او منظمه شوه.

مبارزینو لو سړي ریزي کولو نکی مبارزه د ۱۸۴۱ م کال دنو امبر دمیاشتی په ۲ نیټه د برنس د کور څخه پیل کړه او د یو ي هفتی په اوږدو کی یی کابل د استعمارګرانو څخه ازاد کړاو برتانو ي پوځیان په خپلو محدو دو کلاګانو کی کلا بند شول. برتانیی سیاسی نما یندهمکناټن د یوی غونډی په ترڅ کی وو ژل شو او جنرال الفنسټن هم دبرتانوي پوځ دپوره تسلیمیدو تړون لاسلیک کړ. خو دغه پوځ بیا هم دجلال اباد په لاره کی دمبارزینوله خوا تباه شو او یو داکتر براېډن له دغه پیښی څخه سالم جلال اباد ته ورسیده. په دی توګه دا انګلیسانو هغه ارمان چی هندوکش د کنترول په غرض یی درلود په یوه فاجعه آمیزه توګه ختم شو.

انګلیسانو بیا هم د ۱۸۴۲ م کال په منی کی د برتانیی د پرستیژ د بیار اژوندي کولو په خاطر خپل پوځونه د پیښو راو کندهار له

لاړ ي د تش په نامه ارش په غرض کابل خواته راولیږل او په چور
چپاول یې لاس پورې کړ او د انتقام په منظور یې د کابل ښار زیاته
برخه وسوځوله خو دوی بیا داجرئتونه نکړ چې په افغانستان کې پاتې
شي. همغه وه چې د قیداو شرطونه پرته د افغانستان څخه ووتل او څه
وخت وروسته د ۱۸۴۳ م کال په لومړیو ورځو کې امیر دوست محمد
خان خپل وطن ته راغی او د کابل د سلطنت پر تخت د دویم ځل
د پاره کښیناست په عین وخت کې برتانوي استعمارچیانو ته داسې
تاریخي سبق ورکړشو چې بیا یې څلور ولسیزو پورې د افغانستان
په چارو کې مداخله ونه کړه .

هغه زده کوونکي او غم انګیز درس چې د افغانانو له خوا انګلیسا
نو ته ورکړشو په هند کې هم د ښو رښونو او اړدو ړد پاره هم زمینه
برابره کړه. انګلیسانو په شکست سره د هغوی د نه ماتیدلو عقیده هم د
هند د خلکو د ذهنونو څخه ووتله. برسیره پر دې چې د افغانانو د غه
برحقه مبارزه په سیمه کې سر مشق شوه د استعمار پر ضد جګړې په افغا
نانو کې د ملت پالنې روحیه هم راژوندۍ کړه .



---

مــــــــــــأخــــــــــذ :

۱ - افیموف. ا ، ایلیا ګالکین، لیو زوبوت .... ، تاریخ عصر جدید ، کابل ، ۱۳۶۲ ، ترجمه فریدون شایان .

۲ - الفنستن مونت ستوارټ ، د کابل سلطنت بیان ، کابل ، ۱۳۶۱
ترجمه محمد حسن کاکړ .

۳ـ انگلس ف ، افغانستان ، کابل ، ترجمه گل آقا .

۴ ـ اولس یار ، انگریز استعمار او افغانستان کوټه، ۱۹۷۹ .

۵ ـ بلگرامی اصغر اچ ، افغانستان و هندبرتانوي، کابل، ۱۳۶۱
ترجمه عبدالوهاب فنایی .

۶ ـ پالمر رابرت روزول ، تاریخ جهان نو ، تهران، ۱۹۷۱
، ترجمه . عبدالقاسم طاهري .

۷ ـ پکتیا رعلی خان ، دافغان او انگلیس لومړي جګړه، اریانا
مجله ، دافغانستان دعلومو اکاډمي، ۱۳۶۲ ، ۳ ـ ۴ ګڼه

۸ ـ پیکولین ام ـ کی ، تصویر اقتصادي و سیاسی افغانستان
تاشکند ، ۱۹۵۶ ، ترجمه، فرهنگ .

۹ ـ حبیبی عبدالحی ، تاریخ مختصر افغانستان ، کابل، ۱۳۴۹ .

۱۰ ـ حبیبی عبدالحی، دافغانستان پیښلیك، کابل ، ۱۳۵۴

۱۱ ـ خالفین نفتو لا، انګلیستان دافغانستان پر ضد د تاریخ پاڼي
ماسکو ، ۱۹۸۰ .

۱۲ ـ دملیسون ، تاریخ افغانستان ، پیښور ، ۱۹۳۰ ،
ترجمه منشي احمدجان .

۱۳ ـ رښتیا سید قاسم ، په نولسمه پیړي کی افغانستان، کابل
۱۳۴۱ .

۱۴ ـ عطاالله خان ، دپښتو تاریخ ، پیښور ، ۱۹۴۷ .

۱۵ - غبار میر غلام محمد ، افغانستان در مسیر تاریخ ، کابل ، ۱۹۶۷ .

۱۶ - کاکاخیل ظفر ، پښتانه د تاریخ په رڼا کی ، پېښور ۱۹۶۵

۱۷ - کاکړ محمد حسن ، دافغانستان مالیاتی سیستم ، اریانا مجله ، دافغانستان علومو اکادمی ، ۱۳۶۰ دریمه ګڼه .

۱۸ - لخافسکی ژرژ ، تاریخ خاورمیانه ، تهران ، ۱۳۳۷ ، ترجمه ، داکتر هادي جزایري .

۱۹ - محمد حیات خان ، حیات افغانی ، کابل ، ۱۳۶۲ داقوامو او قبایلو دچارو وزارت کستنر ، ترجمه فرهاد ظریفی عبدالطیف طالبی .

۲۰ - سیترو پولسکی د . ك ، زوبر یتسکی د . ا ، کرف ، ۱۰ ، زمینه تکامل اجتماعی ، تهران ، ۱۳۵۲ ، ترجمه م - حینو خرد ، ح کاسرانی .

۲۱ - نهرو جواهرلعل ، نگاهی بتاریخ جهان ، تهران ، ۱۳۴۳ ترجمه محمود تفضلی ، .

۲۲ - هوبر دشان ، پایان امپراتوري هاي استعماری ، تهران ، ۱۳۴۶ ، ترجمه علی خردمند

د رهتما استاد نظر:

# دافغان او انگلیس لومړی جگړه

هغه علمی ، تاریخی او تحقیقی اثر دی چی علی خان پکتیار زما تر لار ښوونی لاندی لیکلی دی . دا اثر په اتو فصلو او (۹۳) مخونو کی لیکل شوی او په مفصله سریزه او عمومی نتیجه گیری باندی ښایسته شوی دی . . په سریزه کی لیکونکی دخپلی موضوع دټاکنی او اهمیت او بیا دخپرنی سیستوداو دمنابعو د موجودیت په باب یو عمومی نظر وړاندی کوی .

په لومړی فصل کی پکتیار دا مهم ټکی په گوته کوی چی د نولسمی پیړی په لومړی نیمائی کی ولی انگریز ی استعمارگرانو د افغانستان دنیو لو له پاره ملاوتړ لـه او کله یـی چی دا تصمیم ونیولو نو بیائی څه ډول پلانونه طرح کړل او ولی انگریـزی استازی مونټ ستوارټ الفنستن دلومړی ځل دپاره دافغانستان پاچا . شا ه شجاع . سره لومړی تدافعی تړون لاسلیک

کړ . سربېره په دي پکتیا ر په منځنی اسیا کی داستعماري دولتو
نو د پر اختیا یی سیاست هلی ځلی او په خاصه توگه دتزاری
روسیی او برتانیی ترمنځ د افغانستان او ایران په سیمو کی
پراخه استعماري سابقه په غو رسره څېړي .نوموړي داهم ښکاره
کوي چې څنگه دنو لسمی پېړۍ په نیمایی په اروپاکی ـ
دناسیو ناليزم او وطن پالنی افراطی احساسات او دصنعتی انقلاب
او دپانگوالی نظام پیاوړ تیا او پراخه کېدل او داسیائی هیو
ادونو داخلی کمزو رتیا او کورنی جگړي او شخړي داروپائی
استعماري قدرتو نو په امپر یالیستی سیاست باندي څه اغیزه در
لو ده او انگر یزانو څنگه دخپل نفوذ او تسلط د پراخوالی او ټینگو
الی له پاره په افغانستان کی دجاسوسی پراخه شبکی جوړي کړي.
په دو یم فصل کی لیکو نکی دنو لسمی پېړۍ په لومړي نیمائی
کی دافغانستان اقتصادي او سیاسی حالات تر کتنی لاندي نیولی
دي نوموړي ښکاره کوي چې څنگه افغانی ټولنه په فیوډالی نظام
ډېروبه او دکورنیو شخړو او جگړو په لمبو کی سوځېدله .
په دریم فصل کی لومړي په پنجاب کی دسکانو ددولت تشکیلو
ل او دهغی پراختیا یی سیاست او بیا دافغان اوسک دولتونو ترمنځ
لانجی او شخړي او درنجیت سنگ او شاه شجاع ترمنځ اړیکی
او دشاه شجاع بیا هلی ځلی دتخت له پاره تر څېړنی لاندي نیول
شوي دي . سر بېره پر دي پکتیار داسئله هم څېړي چې د۱۸۳۸ سیلا

د ي کال په اوړي کی ولـی انګر يـزانو په خـاص ډول دهند

ګورنر جنرال لارد اکلند په سيمله کی داپـر يکړه وکړه چی دوي ـ

بايد اميردوست محمدخان دکابل له تخت څخه راوغور ځوي او

دنوموړي پر ځاي شاه شجاع چی ددوي ګوډاګی و و او دلندن او

کلکتی دفرمانو نوڅخه ئی کامل اطاعت کولو پر دغه تخت کشينوي .

پـه څلورم فصل کی ليکوال دهند پـه لويه نيمه وچه دانګر

يزي استعمار پنستيدل کيږنو دل او په مختلفو عصرونو کی ئی پراخيدل

او بيادد غه سياست ناوړه اغيزي پر افغانستان باندي څيړي ليکوونکی

داروښانه کـوي چی څنګه دانګـر يـزانـو دختيځ هنـد تجارتی

کمپنی وروو رو په يو لوي اقتصادي او سياسی استعماري ارګان

باندي بدله شوه . په همدي فصل کی ليکوال دامسئله هم څيړي

چی ولی او څنګه انګريزانو . ايرانيان اوسکان دواړه تشويقول

چـی پـر افغانستان بانـدي يرغل وکـړي تـرڅـو دوي و ـ

کولاي شی چـی دافغانستان له کمزور تيا څخه ګټه واخلی .

په همدي فصل کی ليکوونکی په زيات غور سره د انګريزانو پټه

او پيچلی ديپلوماسی دانګريزي جاسوسانو تګ او راتګ او په ۱۸۳۳

ميلادي کال کی د انګرېزانو د ګوډاګی شاه شجاع جګړه چی دا ـ

مير دوست محمد خان په ضدیی پيل کړه تر کتنی لاندي نيولی ده

په پنځم فصل کی ليکوال دانګريزانو لومـړي يـرغـل پر افـغا ـ

نستان باندي. دانګريزانو دزوراولو تماري سياست او داچی څنګه

انګريزانو وکولی شول چی خپل ګوډاګی شاه شجاع . په داسی

حال کی چی برنس او سکنا تن هم و رسره ملګري و ، د۱۸۳۹ ع کال د اګست د میاشتي په اوومه نیټه د کابل په تخت کښینوي په پوره پاملرنی سره څیړي . په دي فصل کی نوموړي یو مهم ټکی چی هغه نه یوازي دانګریزانو یرغل ، بلکی دوي بیاوتلو مسئلي ته ګوته نیسی . د دغه ټکی په ارتباط نوموړي داسی لیکی چی : « کله چی الکساندر برنس دخبرو په ترڅ کی د کلات خان ، محراب خان ، ته یادوري وکړه چی انګلیسی هندي پوځ لا دمخه په افغانستان تیري کړي دي . محراب خان ...دحیرانتیا په حال کی برنس ته داسی وویل : « تاسو دي هیواد ته داخل شوي دا ډیره ښه ده . مګر تاسو به دهغی څخه څنګه راووځی ، » ( ۵۵ مخ ) .

په شپږم فصل کی دشاه شجاع . ددویم ځل سلطنت حالات او دافغانستان د خلکو سخت مقاومت او دوطن پالو ځواکونو راپیدا کیدل او په پای کی د افغانستان دخلکو سلی پاڅون او د انګریز ی استعماری لښکر له سینځه تلل او دانګریزی استعمار څخه دازاداو سرلوړي افغانستان غوڅ خلاصون چی داووم فصل عمده موضوع تشکیلوي په ژوره توګه څیړل شوي دي .

په اتم فصل کی ټکتیار دانګریزانو بیا هلی ځلی دخپل بایللی پرستیژ دبیاتر لاسه کولو له پاره څیړي او په پای کی دانګریزانو استعماری سیاست په افغانستان کی ددوي دغوښتنی ناکامی او دافغانستان دخلکو دوطن پالنی او ازادي غوښتنی په هکله عمومی نتیجه ګیري کوي

پکتیا ر خپله موضوع په یو معین چوکاټ کی په پوره صراحت
او په ډیره رسااو ژوره توګه څیړي . نومو ړي خپل تحلیل دستر
ﻗﻲ او علمی نړي لیدپه رڼا کی پرمخ بیایی او دخپلی څیړنی په -
جریان کی د پوره غوراو دقت څخه کار اخلی . لکه څنګه
چی یو مؤرخ باید اوسی، په همدیډول نوموړی له تشو احساساتو
او ذهنی ګیري څخه ډه ډه کړي او خپله موضوع دعینی واقعیتونو
په رڼا کی څیړي . دنوموړي څیړنه پـه خپله داښکاره کوي چی
لیکونکی په خپله موضوع باندي بوره پوه او مسلط دی
د پکتیاردا تحقیقی اثر نه یوازی د محتو الـه نظره غنی او په عملی
معیار و باندي ولاړدي . بلکی دشکل له مخی هم ښه تنظیم شوي
او په یو غوره سبک سره لیکل شوي دي . دنوموړي لمن لیکونه
هم داښکاره کوي چی لیکونکی دډیرو معتبرو لومړ نیو او دویم
لاس تاریخی منابعو څخه استفاده کړي ده . په مجموع کی دافغان
او انګلیس لومړي جګړه دیو علمی ، تاریخی او تحقیقی اثـر دي
چی زه یی لوستنه نه یوازی تاریخ پوهانو . دتاریخ محصلانو
او دتاریخ مینه والو بلکی دټولو وطن پالو له پاره سپارښ کوم
زه په پای کی دپکتیارله پاره نور لازیات علمی بریالیتوبونه غواړم.

دکتور برهان الدین حساس) پوهندوی
دکابل پوهنتون داجتماعی علومو دپوهنځی استاد
عمومی تاریخ څانګه ۱۳۶۵/۱/۲



علی خان پکتیار دزیړ گل مشهور په کوتوال زوی دگل پاچا لمسی دی. په ۱۳۲۰ش کال دخوست داسمعیل خیلو دډوالو دکوز علیوات په کلی کی زیږیدلی، خپل ابتدایی زده کړی یی په ۱۳۳۱ ش کال دخړبن په لیسه کی پیل او عالی زده کړی یی په ۱۳۴۲ ش کال دکابل په دارالمعلمین کی پای ته رسولی دی. له درو کلو معلمی وروسته په ۱۳۴٦ش کال کی دادبیاتو او بشری علومو په پوهنځی کی شامل او د ۱۳۵۰ ش کال په پیل کی دنوموړی پوهنځی دتاریخ او جغرافیی څانگی څخه فارغ او دننگرهار په عالی دارالمعلمین کی داستاد په صفت مقرر شو. په ۱۳۵۳ش کال کی دروشان په پوهنځی کی داستاد په صفت ومنل شو په ۱۳٦۰ ش کال کی دافغانستان دعلومو اکادمی دتاریخ دانستیتوت غړی شو او تر اوسه په دی انستیتوت کی خپله دنده اجراکوی .